# یادونه او درمندونه

د کتاب نوم ــ یادونه او درمندونه
لومړی چاپ
د کتاب موضوع ــ شعر.
د کتاب لیکونکی ــ سلیمان لایق
د کتاب خپرندوی ــ دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت داطلاعاتو او کلتور وزارت.
د کتاب دچاپ شمېر ــ پنځه زره ټوکه.
د کتاب دچاپ نېټه ــ د۱۳۵۷ هجري لمریز کال دچنګاښ میاشت
د کتاب دچاپ ذمه وار ــ غلام حضرت همکار.
دچاپ ځای ــ دولتي مطبعه. کابل ــ افغانستان

# دگوندي رهبریادداشت

ملگری سلیمان لایق زموږ دهیواد یو پیاوړی او معاصر شاعر دی. دده یوه برخه شعرونه دزیارایستونکو طبقو او اقشارو له ګټوڅخه دفاع کوي او دهغو منافع تمثیلوي. په دې کتاب یادونه او درمندونه کې هم یوه برخه داسي اشعار شته چې هغه په ټولنه کې دطبقاتي تضادونو دخرګندولو په نسبت ویل شوي دي.

هیله ده چې داکتاب زموږ دزلمي نسل پرذهنیتونو په زړه پورې اثر وښندي او دنورو زلمو شاعرانو او لیکوالودپاره به یو ښه مثال شي.

په درناوي نور محمد تره کی

ددلو ۲۵ ــ ۱۳۵٦

# داطلاعاتو او کلتور دوزیر یادداشت

دافغانستان ددموکراتیک جمهوري حکومت داطلاعاتو او کلتور دوزارت لپاره دډېرې خوښۍ ځای دی چې خپلو کمېدلو او ربړېدلو او له مترقي فرهن□ څخه لرې ساتل شوو او محرومو خلکو ته،یو نوی اثر،وړاندې کوي.

دثور پرتمین انقلاب ،لکه هماغسي چې دژوندانه په نورو برخو کې دژورو او ښتونو او تحولاتو سریزه پیل کړې ده،زموږ دخلکو دنوي او مترقي فرهن□ او هنر دایجاد په عظیم کار یې هم لاس پورې کړی دی . او دا کار البته دا فغانستان دخلکو دلرغوني فرهن□ دمیراثونو اودرنو دودونوله ساتنې سره په متناسب ډول سرته رسوي.

زموږ هیواد چې په بېلا بېلو ادبي اعصارو کې د دري او پښتو شعر ډېر ځلاند ټاټوبی او مرکز پاته شوی و ،له بده مرغه په راوروسته کلوکې دملي ضد ،ولسي ضد اوفرهنګي ضد حکومتو دتسلط په وجې،شعر او ادبیاتو په زحمت سره نیم ژواندې او مړاوې سلګۍ پکې وهلې.دشعر ډېوه تپه وه ،ادبیاتو یوه منحطه او ارتجاعي بڼه غوره کړې وه،دتیاتر او تمثیلي هنر په نغري کې یواځې ایرې پاتې وې ،او په کلي ډول سره د هنر او فرهن□ فضا یوه مسموونکې اوزهر جنه فضا وه .

ویاړو چې دافغانستان دثور ستر انقلاب ددغه هیواد هنر پالونکو بچیانو ته دا موقع په لاس ورکړه چې هر ډول ناروا سانسور او غیر عادلانه بندیز له مطبوعاتو څخه لرې کړي او ټولو هغو وطنپالونکو او صدیقو لیکوالو او شاعرانو ته دا آزاد فرصت په لاس ورکړي چې خپل خوځنده او انقلابي آثار،که نظم وي که نثر ، دخپلو زیار ایستونکو خلکو په خدمت کې وړاندې کړي ،هغه آثار چې وطنپرستانه او مترقي محتوی لري.

داطلاعاتو وزارت تر وسه وسه هڅه کوي چې زموږ خلکوته ددغسي آثارو په زیاته اندازه وړاندي کولو سره هغه تنده لرې کړي چې دوی بالاجبار دپردیو غولوونکو او لار ورکوونکو ادبیاتو له لارې کښېښوله.

دادی حاضر کتاب چې دثور دانقلاب په سباوون کې تاسو ته وړاندي کېږي دهیواد دمبارز او انقلابي بچي ، پېژندل شوي شاعر او لیکوال،ملګري سلیمان لایق اثر دی چې هغه دغه دزړه کترې داستبداد په بدو شرایطو کې خوندي ساتلي او خپلو زیار ایستونکو خلکوته چې دهغوی لپاره یې ژوند کړی،مبارزه یې کړیده او خپل ژوند او هستي یې ورته وقف کړیده، وړاندي کوي.

دلایق د «یادونه او درمندونه» اساسي محتوی په دووعناصرو کې خلاصه کېږي: خلک او وطن. هغه خلک چې دتاریخ ریښتیني ایجاد ګران او جوړوونکې دي او هغه وطن چې دهمدغو زیار ایستونکوایجادګرانو کور اوټاټوبی او دمنډو سیمه بلله کېږي.

او څومره ښکلی دی هغه شعر چې دټولو شعرونو خالق او جوړوونکی پکې ستایل کېږي او لمانځل کېږي.

داطلاعاتو او کلتور وزارت ویاړي او هیله لري چې دغسي مترقي اوپر محتوی آثار په زیاته پیمانه خپاره کړي او په دې توګه د وطن دریښتینو زمنو او لوښو،دانقلابي لیکوالو،شاعرانو او هنرمندانو،حق ورادا کاندي او دملي او مترقي فرهن□ یوه شتمنه پانګه منځته راولي .هغه پانګه چې راتلونکې نسلونه دمبارزې، وطنپالنې،خلکو ته دخدمت او دیوې پر مختللې ټولنې دایجاد په لار کې تر ټولو الهام واخلي او دلارې رانه مشالونه یې وي .

داطلاعاتو او کلتور وزیر

بارق شفیعي

# لایق او دده شعر

سلیمان لایق دشاعر په توگه دافغانستان دملي شورا داومې دورې دنهضت څخه زېږېدلی شاعر دی. دې نهضت دده دشعر لومړنیو سپرغیو ته لمن ووهله او ده ته یې لاره خلاصه کړه چې دسترو پښتو ژبو شاعرانو په کتار کې ودرېږي.

ده په دې دوران کې چې لا ډېر زلمی و، دوطن دفاع ته ور ودانګل ، داستبداد، بې عدالتي او داستعمار له پاته شونو سره یې مبارزه پیل کړه اوله لیریک شعر څخه یې مبا رز شعر ته مخ ور واړاوه. دسیاسي اختناق او بندیز له کبله ده نشو کولای چې خپل شعرونه دډله ایزې مفاهمې دوسیلو له لارې خپاره کړي، نو به یې هغه دانقلابي روښانفکرانو په مرکو کې لوستل او دهغوی په ذریعه به نقلېدل اوعامېدل.

دی ۱۳۳٦ هجري لمریز کال په شاو خوا کې ، دکارګر دطبقې دنړۍ لید تر نفوذ او جاذبې لاندي راغی .

د۱۳۳۸هجري لمریز کال په حدودو کې لایق داصولي کیڼو روښانفکرانو په محفلونو کې یو پېژندل شوی اوفعال شاعر او لیکوال و.

په۱۳۴۳ کال کې لایق دافغانستان دخلک دموکراتیک ګوند مؤسسې کانګرې ته چې ددې ګوند دمشر ملګري تره کي په کور کې راغونډه شوې وه ،داستائحي په حیث لاړ او دده په قول دوباره تولد شو :

کله چې له ګونده دکانګرې انتخابي شومه
وزیږېدم بیا او تولد انقلابي شــــــومــــــه
نور دمحتسب په کوڅه نه ځمه او نــــه ځمه
لاړم له جوماته او سپېڅلی شرابي شومــــــه
(سپېدې دلایق نا خپور شوی اثر)

دلایق شعر زمایه نظر دوه مرحلې لري:
یوه مخکې تر۱۳۳۸ کاله.

بله وروسته تر۱۳۳۸ کاله.

په لومړۍ مرحله کې شاعر لا دخپل تفکر او شعر په احساسي مرحله کې دی. دهغه شعر یو تېره پرېکړونی او روښانه لوری نلري او له ځپځپاندۍ سره مخامخ دی :

چېرې یو سم دار سوا او ناقــــــرار زړه
دآرزو په لمبو سوی گرفتــــــار زړه
زړه مې غواړي چې له زړه سره همراز شي
خدایه وښیه دې زړه ته یو بیـــدار زړه
(چونغر)

په دغې مرحلې کې شاعر په نیم راڼه مزله روان دی او نه پوهېږي چې چیري لاړ شي او څه وکړي، خو وروسته تر ۱۳۴۳ څخه دشاعر دسیاسي اوهنري واقعي بلوغ زمانه رارسېږي ، په دغې مرحلې کې شاعر خپله لیکه موند لې ده ، ژوند او هستي ته په ډېره روښانه سترگه گوري ، هی□شی ورته ابهام نلري ،دطبقاتي مبارزې سره کرښه یې مخ ته ځلېږي او دهمدغې مبارزې له معیارونو سره سم یې خپل ژوند او هنر عیار کړی دی. له بلې خوا وروسته تر دغې مرحلې ده چې دلایق شعرلادپوخوا لي خوا ته ځي اودده دشعر خصوصیت وروسته تر دې مرحلې دادی چې خپل خلف نسل په ځان پسې را کاږي او په ځوانو شاعرانو باندې ژوره اغېز ه کوي .دده سبک ،دده الفاظ اودده دشعر مضمون د ورپسې نسل په شعر کې له ورایه ځان ښیي.زیاتره زلمي شاعران دده شعر او شخصیت ته احترام لري او ددوی زیات شمېر یې ځان دده شاگردان بولي.دلایق دژوند په ټوله موده کې داسې شېبه نده راغلې چې دی له حاکمه محافلو سره سوله وکړي،هغوی وستایي اویا حتي سوله ایزې لارې چارې ور سره غوره کړي .دی تل منتقد،جمال ستایونکی او مبارز پاته شوی اوپرله پسې یې خپل شعرته پر انقلابي لاره وده او تکامل ور کړی دی.له همدې کبله ده چې په ډاډ سره ویلای شو یو ځلمی او با مسؤلیته نسل چې نن یې قلم په لاس کې دی، که وغواړي یا ونه غواړي دلایق دادبي مکتب پیرو دی ،دهغه په لیکه روان دی او دهغه په سبک شعر وایي. که چېرې ددې لنډې سریزې حوصله تنگه نه وای نو مابه گڼ شمېر نمونې

دلته وړاندې کړي وای .

وروسته ترپورته مرحلې چې موږ یاده کړه دلایق دشعر لیک او لاره څرګنده ده او له همدې کبله ده چې وایي:

«اې زما ملګرو دجنــــګو
زموږ دسرو سرکشو بیرغـو
اې راویښوونکو دزنګـــو
زموږ دخوارو خلکو دننګو...
...نشته بله هیله بې له جنګه
نشته بله لاره بې له ننګـــه»

(یادونه او درمندونه) اویا:

توره وباسه له تېکي ، چې ریښتونی یې باور شـــي
ستا په نن☐ او په مېړانه ، ستـا په توره اې پښتونــه
هره لاره ورته نیسه ، هــــره تیږه ورته څـاره
هر ګودر ورته ګرداب که ، هره ورځ ورته کلونه
باندې ویې شلوه خېټې ، ترینه ویي باسه ستـرګي
پې ور ویې ځپه ژامې،پې ورمات یې که غاښـونه
(یادونه او درمندونه)

تر هغو چې زه ملګری لایق دیوه مشر اودیوه ملګري په توګه پېژنم ،دوه څېرې لري:انقلابي لایق او شاعر لایق اوتر هغو چې زه لایق دیوه ملګري او استاد په دود پېژنم،هم لایق دی او هم شاعر.

انقلابي لایق تل دخپلو خلکو په خوا کې ،دکارګرانو، بزګرانو او زیار ایستونکو په سنګر کې دیوه وفادار او زړور لار ښوونکې په توګه پاته شوی دی ، هغه دافغانستان دکارګرې طبقې دګوند دغړیتوب شرف او ویاړ دګوند دتأ سیس له شېبې نه بیا تر او سه

پوري لرلی او دادی دا نېکمرغي ورپه برخه ده چې پنځلس کاله یې پرته له څه ضعف او سستۍ او پرته له ستومانۍ نه دګوند ټول اوامر منلي او له خپلو خلکو سره یې اوږه په اوږه د استبداد،ارتجاع او استثمار اوهرډول ستم سره مبارزه کړې ده او اوس دنوي پرتمین افغانستان دجوړښت لپاره دافغانستان دخلق د دموکراتیک ګوند دمرکزي کمېټې،دافغانستان دجمهوري دولت دانقلابي شورا او دوزیرانو دشورا دغړي په حیث په کار لګیا دی.

لایق دیوه انقلابي ملګري په صفت په اصولي برخه کې یو بې ګذشته او کلک او کله هم ځیږ ملګری دی دخلکو دګټو په برخه کې په ځان هم نه رحمېږي.

هغه دانسان ټول غرور، ټول شرف، ټول کرامت او عزت دیوه ولس په غرور، دیوه ولس په شرف اودیوه ولس په کرامت او عزت کېویني او تل یې دیوه انقلابي ملګري په توګه له هرډول ځان ځاني او خودخواهۍ او انساني هوا او هوس سره مبارزه کړې ده .پخپله یې جګه شمله نده وهلې خود ولس او زیار ایستونکو خلکو شمله یې تل لوړه او ویاړلې ساتلې ده او تل یې له ځا نه انقلابي تواضع ښوولې ده. او همدا وجه ده چې دهغه انقلابي او هنري شخصیت دبهرنیو شاعرانو اوادیبانو او په خارج کې دپښتو ژبې زده کوونکو پام ځان ته ور اړولی دی. او دادی دهغه شعر دهیواد له پولو څخه پورې وتلی او په یو شمېر هیوادونو کې لوستل کېږي، څېړل کېږي او تر کره کتنې لاندې نیول کېږي چې دا پخپله زموږ دشاعرانو، زموږ دخلکو او فرهنګي ټولنو لپاره دویاړ او افتخار وړ خبره ده.

خو شاعر لایق بیا د ډېرو رقیقو احساساتو خاوند پاتي شوی دی ،هغه دژوند ډېرو تابلوګانو او رومانونو ژړولی دی. تر هغو چې زه خبر یم داختر مړۍ یې په دې دلیل له ستوني نده تېره شوې چې په زرهاوو زیار ایستونکې ماشومان په هماغې شپې نهر نهور او وږي ګرزېدل او ده دا وس نه درلود چې ټولو ته ډوډۍ ور کړي.

زه بیا بیا ددې شاهد پا ته شوی یم چې کله دوطن له یوه ګوټ نه یو رنځور ملګری راوستل شوی نو لایق یې سخت ځورولی او له خپلو ټولو مشغولا وو سره سره یې درنځور ملګري پوښتنه کړیې ده.

دشاعرانو زړونه ډېر پراخ دي او دا بيخي رښتياده. دلايق زړه دخلکو دمينې کور دی. دلايق په هر شعر کې له خلکوسره، له ډېرو ساده خلکوسره، له کارگرانو، بزگرانو، له شپنو او زيار ايستونکوسره مينه ځپې وهي. له ماشومانو سره مينه دشاعر يو ځلاند او غوره خصوصيت دی. هي□ ما شوم له هغه سره دنابلدۍ او بيگانگۍ احساس نکوي.

لايق دکارگرانو شاعر دی، دلايق په شعر کې ددغې دوران جوړوونکې طبقې دآزادۍ او دهغې له خوا دتاريخي رسالت دسرته رسولو ډېر پيغامونه شته. لايق دبزگرانو شاعردی، دوطن ددښتو او کروندو په ښکلاهغه سړی پوهېږي چې دلايق په شعر کې ددغه ژوندي او ددښتو دخاوند بزگر ستاينه او لمانځنه ولولي.

لايق دخوارو او په کلونو کلونو لا لهاندو اوسرگردانه کوچيانو پرديسانو شاعر دی، دهغو کوچيانو چې پېړۍ پېړۍ دهغوی کډې بار دي او له يوې سيمې نه بلې سيمې ته په سفر لگيا دي.

او لايق ښځه ستايي نه يواځې يې پدې ستايي چې د خلقت يوه باکماله او ظريفه تحفه ده بلکې پدې يې ستايي چې هغه مورده، هغه دبشري نسلونو روزونکې او پالونکې ده، هغه ده چې نړۍ ته ستر او جاوداني شخصيتونه وړاندي کوي. له ښځې سره دزړه خواله کوي او دهغې دمظلوميت پيغام دټولو انسانانو غوږونو ته رسوي:

مه مې خندوه نارينه نه يم دخندا
زه يوه ناره يم دغمونو د دنيـــا

او:

زه دژوند جوهر دعشق ډېوه دانسان مور ومه
تا کړمه نانزکه دشيـــــــــطان د مشغـــو لا
زه دانسان مور يمه درنـــه يمــه آزاده يـــــم
دا دبندگۍ زولنې لـــــري کــړه لـــه مـــا

( ۹۸ مخ- دښځې ژړا)

او هم:

« عشق يې دانسان دژوندانه د بقا لاره
غېږ يې مدرسه دنوابغو د فکـرونـــــو
ښځه يوه نغمه ده دعشقونو دخوبونـو
ايستې ده فطرت د ژوندانه له ربابونو »
( ۵۹-مخ، ښځه )

لايق دهر شاعر په شان په ښکلا باندې مين دى خو هغه هېڅکله له ښکلا نه په ځانګړي ډول دخوند اخيستلو هڅه نکوي، هغه ښکلادټولو لپاره ،دخپل ولس لپاره، دخپلو خلکو لپاره پرته له تبعيض او امتياز نه غواړي.

دلايق په شعر کې هرڅه ښکلي دي، لمر ښکلى ، دښته ښکلې،سين ښکلى، ګل ښکلى، بوټى ښکلى، شګه ښکلې، ځوځ ښکلى، بېديا ښکلې، چمن ښکلى او بالآخره «چونغر» ښکلى او تردې ټولو پورته دزيار ايستونکې انسان تصوير ښکلى.

او دادى اوس لايق دثور دپرتمين ژغورنده او ستر انقلاب تر بري وروسته د«يادونو او درمندونو»ښکلې ګېډۍ برابره کړې او خپلو زيار ايستونکو خلکو او قهرمانو ملګروته يې وړاندې کوي. هغه ګېډۍ چې پکې هرڅه شته ، « دژېړو شپو» له ياده نيولې بيا دثور ترسرو او انقلابي ورځو پورې.

زه لايق ته ديوه شاګرد او يو کشر ملګري په توګه چې نه يوازې دسياست په ډګر کې ورسره يم يلکې دفرهنګي کارپه جبهه کې به هم دهغه په خواکې ولاړ يم ، د«يادونو او درمندونو» مبارکي وايم

او هيله من يم چې زموږ دغه انقلابي شاعر په خپلو پياوړو ادبياتو او اشعارو کې د ثور د پرتمين انقلاب نه نشت کېدونکى اوښتون او دهغه دنتائجو دسپېڅلو ګلانو يادګارونه راتلونکو نسلونو ته ولېږدوي او هيله لرم چې دشعر دغه ستره مجموعه وکولى شي دانقلاب په راتلونکو بريالیتوبونوکې خپل ستر او عظيم رسالت سرته ورسوي.

وياړم چې دا مجموعه وروسته دثورتر پرتمين انقلابه چې دافغانستان دخلق د دموکراتيک ګوندپه لار ښوونه اودخلکو دوسله وال پوځ په وسيله او زموږ دګوند دستر

مشر نور محمد تره کي په امر سرته رسېد لی دی ، خپرېږي او دا داطلاعاتو او کلتور دوزارت لپاره دافتخار ځای دی چې دوطن دیوه زړور او با احساسه انقلابي شاعر حق وروسته ترډېرو کلو څه ناڅه ور ادا کوي.

ـغوړېدلي دې وي زموږ دنوي شعر سره ګلان.

ـاو تېره دې وي دلایق دشعر ځلانده توره !

امین افغان پور

کابل-۵ر۵ر۱۳۵۷

را تلو نکو تــــــه

ډېر و ګړي به زما له مر ګه وروستـــــــــه
زما په شعر با ندې وا يي ايرادونــــــــــه
ښايي ځيني په دې پوه شي چې په خوله مې
ظا لمانـــو لګـــولـــي وو مهـــرونــه
که هر څو فلک نا وړ ې په ما و کـــــړې
ما جــ□ کړي دي دخلکو آوازونــــــه
ما آسمان د آزادۍ تــــــه لار ايستــــله
خوخوني ښکاري مې مات کړل وزرونـه
هره خوا چې د رڼا پـــــه تمـــه لاړم
خوا ه شوي وو ډيوو لا ندې دامونــــه
لاس مې جــ□ که د دردمن دسر ساتوتــه
که هر څو يې را ځپلي وو لاســـونــه
هر آ واز مې د مظلوم دسر سپـــــر شـــو
هر يو بيت مې د محروم د زړ ګي خونـه
زما هډو کې به لا فخر کړي په ګور کې
و مي نه ليکل د سپيـــو صفتـــونــه
د حر مان په لمبو وسوم خو ټيټ نشـــوم
ومې نکړل مغرورانو تـــه عـــذ رونــه
چې زاړه کې ا سير شوي وو لــــه عجزه
ما کړل مات هغه دعرف ځنځيرونــه
نوی روح مې د پښتو شعر ته ور کــــه
په ګلونو کې مې ونغښتل اورونــــــه

تر کلو کلو به خېژي زما لــــه شــعره
دشهیـــد و تکلـــونـــو فـــر یـــا دونـــه
څو چې ژبه دپښتو يي زه به يمـــــــــه
هېر به نکړي پښتانه زما لالو نـــــــه

کابل- ۱۵ر۱ر۱۳۴۱

وطن ته

بيا په ما راغلي چپاوونه دغمونو
راکه نوئ دمه اې زما ښکلې وطنه
وينه مې قربان شه ستا لپاره درنګونو
ستر ګې ګلان شه ستا دتړو په لمنه
ستا په محبت کې ملا و نيوم په کفر
ګوري زما لپاره په هر ګام کې دار او ونه
نور که له تا غوړي جنتونه دعيشونو
زه به ستا لپاره سره دوزخ ته شم دننه
ته که بې حاصل يې که جاهل يې که کاهل يې
ستا خېره که خواره، که سپېره ده، که پمنه
ماته دجهان ترټولو ښو ښايسته ته يې
ځوځ دې راته ښکاري رنګينه تر هر سمنه
ما کې که څه شته دي ستا له فيضه را کې شته دي
اې پروردګاره زما دروح زما څښتننه
زه دې دتوفان په يرغلونو کې رالوی کړم
عشق کې دې پاخه کړل زما زړه او زما ينه
زما له هر آواز سره پېښې دامير رېبړ.دي
ځکه چې ما ج□ که دا آواز ستا په بلنه
ته زما ځيګر يې زما زړه يې زما عشق يې
زه د تا آواز، د تا فرمان، دتامننه
کابل – ۱۸ر۵ر۱۳۵۱

## خلکو ته

را تېرېږي دزندا ان له ديوا لونـــــــــو
دزمان دقافلې نوی جـــــــــــرس
هر آواز دآزادۍ چې رارسېـــــــــــږي
زما په ستونې کې قوي شي يو په لـــــــس
دون همت په يوه گوله باندې تسلـــــيم شي
مرد به نشي په گولۍ له ځايـــــــــه پس
بې له تېغه بله لار ورســـــــــــــره نشي
چې نه کور در ته پرېږدي او نه جـــــوس
گوره گوره چې گرېوان يې خوشي نکــړې
ځودې مټې، ځودې لاس وي، ځـــودې وس
ددې تور زندان قلفونه رېزمـــــــــريز کړه
نا مردي ده قبلـــــــــــــول ددې قفس
په مردۍ او آزادۍ باندې يې تېر کــــــــړه
څه که ژوندې يوه شېبــــــه وي يا نفس
سره يو شئ درواري شم خورو خلـــــــکو
دسيلاب مخې ته نه درېږي خـــــــــس
په وطن چې خپل وطن به خلاصومـــــــه
خلکو نلرم په زړه کې بل هــــــــــــوس

کا بل، گذرگاه ــ ۱ر۳ر۱۳۴۳

د خودۍ یون

دا له موږه سره څــــه کــــــوي گردون
دا ملگری دټیټانو دغــــــــــــه دون
له غروره مې سر کوز نشو فلك تـــــــــه
څو مره لوړ دی دا زما دخودۍ یــــــــون
دا افسوس دی چې خپل وروړ را سره نه ځي
دا جاهل، په ځان ناپوه، دغه جبـــــــــون
کنې ما به دا تاریخ و اړولـــــــــــــی
په تقدیر به مې وهلی و شبخـــــــــون
که آسمان هر څو څپیړې په مخ را کـــــړې
تسلیم نشو دا زما زلمی جنـــــــــون
یو زمان به ددې خلکو په سوك ما ت شي
هغه سر چې ج□ آسما ن تــــــه و پرون

کابل ــ ۲ر۳ر۱۳۴۳

## دپسرلي آواز

بيا له غرونو رار سېږي يـــــو آواز
خوځوي په مړاوو بڼو کې پــرواز
دنسيم مطرب په زيړو پاڼو لــوبي
گرزوي په وچو لښتو کې شهباز
خا مخا به بيا په گلو بهار راشـــي
بلبلان به شي چمن کې هـــم آواز

دنجونو مینه

یار به مې پخلاشي زړه وایي ګواهـــــــي
کله پاته کېږي په سپین مخکې سیا هــــي
چاویلي داچې ښایسته لوڼوي زړونـــــه
کله روا شوې پر ښتو ته تباهـــــــــــي
پرې مې بړده ملا زه دتسپو او نفلو نه یـــمه
عشق په لېونتوب را باندې وایي ګواهـــي
یار را اچولې په لاسو کې تورې څـــــڼې
زه یم دخوبانو لاس تړلی سپا هـــــــــي
ژوند یوه قافله ده دغمونو، د دردونــــــو
یمه دغمونو په تیا لونو کې را هـــــــــي
لامبم هره شپه دخپلو اوښکو په تالاب کې
لېږمه کاروان دفریا دونو پګا هــــــــــي
جار به جنتونه پالنګونه کړم دحـــــــورو
یار که چېرې راکړي پخپل غېږ کې پناهي
نه ځي له لایقه عشق دنجونو په توبـــــــو
نه ځي له زنګي نه په زمزم کې سیاهـــي

کابل ــ ۱۲ر۴ر۱۳۴۲

تاسي که یو نشئ اې خورو ورو زلمیانو　　هېڅکله به نشي ځوک آزاداو نه آباد
زموږ نفاق وسله د د ښمنانو د بـــري ده　　یو شئ سره یو شئ چې وطن نشي برباد

## ساقي ته

ساقي ماته سره اورونه را دچښــــلو
ثه دسولو ثه دځان رسوا کولــو

هسي اور چې لېونيو سره ښـــايي
توفيق راکړي دګرېوان دثيرولــو

په مستۍ کې رانه حزم دسر واخلــه
مجال راکړه دخپل ځان فدا کولــو

ستا دشونډو له ګرمۍ نه قرباني شــم
ستاله اوره، ستاله شوره ستاله سولو

ثومره ثومره چې سوځېږم نه مړ پړم
ثه قدرت لرم دځان رسوا کولــــو

له ځيګره مې دوينو فوارې ځـــــي
چې مشغول يم دوطن په يادولـــــو

کابل ٦ر٤ر١٣٤٣

## دا وطن به ښکلی شي

داتياره به ټوله شي له غرونونه رڼا بـــــــه شي
دا آسمان به پاک شي له وريځونه پخلابــــه شي
دا دثو ليوانو او خوګانو دوحشت شپه بــــــه
تېره شي له سترګو په يوه رپ کې الونيا به شـي
دا دسويو چيغو دتيري او د ستم سيمـــــــــــه
مېنه دوروری، اوآزادۍ، او دصفا بـــــــه شي
دا وطن به ښکلی شي، سمسور به شي، آباد به شي
پېټ به په ګلونو شي، ښايست ددې دنيا به شـــي

کا بل ............

آزا د پروا ز

گرزم لېوني غوندې رغونه لټومــــــــــــــه
څنو دجانا ن ته څو گلونه لټومــــــــــــــه
او ښکې مې له سر گو په گرېوا ن دا خوشي نه ځي
غاړې د دلبر ته ا مېلونه لټومــــــــــــــه
زه د ښايسه وو د جلوې پروا گير نه يــــــــــم
دې بېدرده زړه ته څو دردونه لټومــــــــــــــه
وا يي په دې سيمه د كاروا ن اورونــــــــه بل وو
زه يې په ايرو كې اثرونه لټومــــــــــــــه
زه انقلابي يمه ريبا ره يا رته وا يــــــــــــه
ستا په نظرو كې گردشونه لټومــــــــــــــه
ما دزمرو غږ.و په دې غرو كې اورېــــــــــدلی
گرزم په هغو پسې او غرونه لټومــــــــــــــه
چېرې هغه ورځ چې به آسمان له غوسې تور شي
يوه آزاد پروا ز ته توفانونه لټومــــــــــــــه

کابل ــ ۴ر۴ر۱۳۴۲

گو ن□ شوي فريا دو نه

څه گون□ شوي د پېرېو ارمانونــــــه دمړو ورته افغا نانو په رگـــوكې
چې په هو به يې دنن□ رغلي تاوده وو اوس يې نشته بې له مرگه په ايرو كې

انساني چیغه

که هرڅو زما ځوا ني ده سړه شـــــوې
زه لا اوس هم لېونی او ارماني یـــم

په لاسو کې مې کړئ شورو فغان کړي
دڅه خامو ځنځیرونو زنداني یـــم

په توفان مې وېروي او نه پوهېـــــــږي
چې زه مخکې له توفانه توفاني یـــم

خوله به پټه هرگز نکړم که حلال شـــم
زه دخلکو یوه چیغه انساني یـــــم

ما له مرگه ویروي او خنــــــدا را شي
چې څه وېره به کوم چې قرباني یم

دی زاړه برجونه غواړي په ماتم کړي
زه یوه نښه دبرجو دویراني یـــــم

له ما هیله دزړو حوصلو مه کـــــړئ
زه څپو په سر اخیستی سیلاني یـم

کابل ـ۱۶ر۱۳۴۴۷

دمبارزې سر

کوز نشو ظالم ته په هېـ□ توگه زما ســـــر
هرڅومره که گرم په وهو شو ستمــــــــگر
زه په جـ□ آخور کې دچا نه خورمه وربشي
نه دچا خر کېږم دبارونو نه کـــــــــــچر
زه که دچا خر شمه پښتو به شرمنده شــــي
ناړي به را تو کړي په سپین مخ باندې هنـــر

کابل ..............

بیا را ژوندی شوی په وطن کې استبداد
بیا چاړه سره شوې ده په وینو دجلاد

پورته کړئ زلمیانو شور دخلکو دیووالي
جگه کړئ ناره په غرو رغو کې دجهاد

زموږ وطن به آزاد شي

هرآواز چې پورته زما له خولې شو په مستۍ کې
خوله را باندې ماته محتسب کړه په وهلو
دا د حق آواز دی چې نه مري نه غلی کېږي
کړي دې زاهدان تکل د ځان د شرمولو
نه ځي له رندانو شور دمینې په توبو
غلي مستي نشوه په منصور کې له وژلو
سم شو پرون بیا د شور بازار ملا په کلیو
ستړې شوله خوله مې د لاحول په ویلو
دا د انګریز سپی به له دې خلکو نه تم نشي
ځو چې یې یو غاښ وي لا په خوله کې د چیرلو
مادی د رولی په غیرت پرچم د خلکو
زړه مې دی نیولی هر لړم ته د چیچلو
باد د آزادۍ به د پرچم وزرونه خلاص کړي
خلک به ژوندي شي د هغه په رپېدلو
خور به شي هیبت زموږ د چیغو په وطن کې
مات به ځنځیرونه شي له متو او ځنګلو
دا وطن به ښکلی شي ،آزاد به شي، آباد به شي
خلاص به سي د شیخ او د شیطان له ځورولو

کابل-۱۳ر ٦ر ۱۳۵۱

د اغزیو لار

نه وزي له خولې نه مې بې ساهه ترانه
شرم دساقي دی بې شرابو پیمانه
زه په دې تیارې کې یوې رڼا ته منتظر وم
اوس به یاران و گوري مستي ددیوانه
لار دیار دوصل په گلانو پټه نه ده
اخلي په اغزو کې ازموینه زمانه
جار شمه ،قربان شم سره یو شئ خورو خلکو
نه دی په وجود کې هی□ یو غړی بیگا نه
نشته ځان ځاني کې مصلحت دلامبوزنو
سېل دحوادثو هسي غواړي بهانه

کابل ......

زما انتخاب

ما له دې نړۍ نه انتخاب که عشق دښکلو
شرم دی بلبل ته چې مین نه وي په گلو
زه په هر ذره کې دجانان تجلي وینم
ځکه یو شان ځیریم سپین او تورته په کتلو
دا دژوندون در وی هسي نه دی چې گونگی شي
بو خت دی زاهد دخپل آبرو په خرڅولو

## دخلکو غیرت

نه به شي له تا□ داستبداده سره سم
نه غیرت دخلکو، نه زما لېونی غم
سر خو هغه سر وي چې پې وار د تیرو نه وي
زړه خو هغه زړه وي چې وریت شوی وي په غم
موږ به دغه خپله دنیا گې بله دنیا کړو
مات به شي دې لو به کې سرو نه دستم
هیڅکله دخلکو دښمنان تم کوی نشي
نه جا دو دشیخ نه گوزارو نه درستم
زه دهغې خاوري نذ ر شوی قرباني یم
یوه خوایې آمودی بله پوله یې جېلم
نه ځي افغانان له نامحرم سره په لاره
رزم او بزم نشي دمحرم او نامحرم

کابل ۱۳ر ٦ر ۱۳۵۱

## دلمر جونگړه

اې دوړانگو لورې داتیاره لاره رڼا کړه
اې د سپېد و خورې دغه توره شپه سبا کړه
زما په سړه وینه کې داور گرمي خوره کړه
ما ته ننه زړه کې یوه دلمر جونگړه را کړه

## دځنهو جال

په چمن کې چې دې پېرق دخندا خور شي
زما دزړه په کور کې ګڼ دهیلو شور شي
چې دمخ ته ځومره ګورم هومره سوځم
ما بد مرغ ته دې دوصل اوبه اور شي
په یوه موسکا دې عقل رانه یو ووړ
خدازده څه به لا په ما بېچاره نور شي
لېوني په ځنځیرو کې فریادي شي
چې په مخ باندې دې جال دځنهو خپور شي

کابل ۵ر۳ر۱۳۴۴

## نوی یون

تاریخ څه دی ؟ یو آواز دی
ازمویې زموږ غوږونـــــــه
دکوي زموږ جامونـــــــه
تشوي زموږ عقلونـــــــه
ته یوه خپله نغمه سر کــــړه
اې ددغه زمان یونـــــــه
اې ددغه وخت مــــلالــې
اې د دې مهال مجنونـــــه
اې زمریه، اې پښتونـــــه

کابل ۷ر۱۲ر۱۳۴۴

د زمان څرخ

څرخي دزمان ګرزي احمقان ورته اړم دي
دا ناورسره ځغلي ، هرقدم کې په مخ لوېږي
يو باسي دزمان په توفانو کې دژوند لاره
بل سپور دده په څټ په پټو ستر ګو پې تېرېږي
دنيا توره تيا ره ده دتيارو کسا نو لاس کې
ډېوې يې هغه څوک دي چې سو ځېږي ويلي کېږي
هرباغ فتنه دعقل ، هرچمن آفت دفکر
هر څڼه دسنبل حلقه ددام ده چه غوړېږي
هرشرن□،هره نغمه، هره سندره، هره لوبه
ځګروي دي اوسپلي دي يا سلګۍ دي چې خورېږي
برېښنا يې غاښ چيچنې دغمونو دباران دي
باران يې دغم اوښکې دي په ژوند باندې اورېږي
دغرب ښکلي ګلان يې دمشرق په وينو رن□ دي
دشرق سا ده بلبل يې بويوي ترېنه تاوېږي
پېړۍ لکه بېړۍ چې درنه شوي يي بې حده
زموږ دژوند له مال سره مجهول پلو خوځېږي
کږه وږه روانه ده ،موجونه يې وردانګي
بې درده ماڼو ګان نه پې پروا کړي نه وېرېږي
اې عقله له مغرور انسان نه وکړه دا پوښتنه
دا ستا کاږه مزلونه عاقبت چېرې رسېږي ؟

کابل ۳ر۳ر۱۳۴۲

د امید زرینې وړانګې

توري وريځې کوږه کوږه پلنې پلنې
ترې وتلې دلمر ژیړې ژیړې ستنې
د بهار دزړه لوګي کې ماته برېښي
دامېد زرينې وړانګې سرې بخونې
آسماني برېښنا به وخاندي ښېد يا ته
که هر څو دوريځو ستر ګې دي ژړنې
لمر به خور شي دشپنو په تيارو تالو
په ګلونو به شي پټې لوځې ونې
اغزن غرونه، وچ لاشونه ،سپېرې دښتې
سم جنت به شي له څوکو تر لمنې
نا اميد بز ګر به وخاندي بېوا که
نا ځا يي به ټولې پولې شي چکنې
خو په ډېر افسوس به بولي ځوانې پېغلې
زما دژوند ترخې سندرې دا غمجنې

کا بل ۱۵رر۱۱ ۱۳۴۱

د ژوند قصه

ژوند دهڅو د رز مونو يوه قــــــصه ده
د مرديو نامرديو په غوغـــــا کــــــې
ګوره ګوره چې فرصت درنه لاړ نشـي
تش دخېټې او دخوټې پـه سو دا کــــې

## زمان تښتي

ما نه هسي بېوفا گلرخان تښتي
چې له زړه دمحتضر نه ارمان تښتي
گوره هومره افتاده او زبون نشې
چې له لاسه دې اختيار دخپل ځان تښتي
دآسمان په مټ کې توان د وهو نه و
د برېښنا خنجر ته گوره عريان تښتي
ته لا کومې زما نې ته منتظر يې
زه يې وينم ورځې خوځي زمان تښتي
ځوچې ته دا ليمځي کوځو اوبا سې
زما له زړه دفريادونو توفان تښتي
په اسره به مطلوب در نشي په گوتو
ور پسې شه چې راغلی امکان تښتي
ځوک به يوه او ښکه په ما او تا توی نکړي
خلك لار وهي په بيړه جهان تښتي
تر گوزار دې قرباني شم لېږ چټك شه
چې دښښې له ساحې نه لېوان تښتي

کابل ۱۵ ر ۱ ر ۱۳۴۱

## اغزي او گلونه

| | |
|---|---|
| پرپړده پرپړده چې ببر شي ،لا ببر شــي | دارنگين رنگين گلونه دبستـــــا ن |
| لمر او تنده به دسختو نر معلوم کړي | چې اغزي دسارا مري او که گلان |

## کمزورې رڼا

دتیاره ژوندون په لار کې زموږ دمخه
یوه ضعیفه ډیوه ګې سوځي بلېږي
لاره ورو ورو وهئ ملګرو باور نشته
دا رڼا په او سېلي باندې تېپېږي
زه یې وینم چې دهر قدم له زوره
لکه پاڼه دنسیم مخ ته رپېږي
په هر ګام کې دشیطان دامونه ینبي
هر لاروي ته خروړي سپي غپېږي
زه به وو وایم دژوند خوږې سندري
خیر که ژامي مې متېږي یا ځبېږي
تر هغو به دا دمیني بلبل ساتم
څو دردونه دانسا ن په کې چغېږي
پروا نشته که دا لار توره تیاره ده
ماته کاڼي بوټي حال وايي غږېږي
کومه نښه چې منزل ته لوری ښیي
ماته لمر غوندې رڼا کړي او ځلېږي
اې زما دزړه تناکو په چودو شئ
عمر لنډ لکه برېښنا دی او تېرېږي

کا بل ۲۸ر۱۱ر۱۳۴۱

حر کت

نغښتي حر کت کې فطرت لوی لوی قوتونه دي
ځکه هم مکان او هم زمان په خو ځېدو دی
ته لا تر شړی لاندې ویده په درانه خوب یې
ستوروته یور پ کې بل انسان په خو ځېدو دی
ته د سېلاب لار کې پنډوې وزې او مېږ.ي
زه وینم په غونو کې باران په خو ځېدو دی
ځومره افسوس را شي چې تا وینمه ویده یې
بلې خواته گورم درست جهان په خو ځېدو دی
وباسه بړی خپله ساحل ته چې زه وینم
بحر قهر جن دی او توفان په خو ځېدو دی
ج□ شه ، را بیدار شه هسي نه چې پکې دل شې
ځمکه که او به دي، که آسمان په خو ځېدو دی
زه دبلبلانو او گلانو شاعر نه یمه
ماسره دشپو ورځو کاروان په خو ځېدو دی
دانړی به مستة دشرابو په نغمو کمه
دو مره که تسل شم چې افغان په خو ځېدو دی

کا بل ۷ر۹ر۱۳۴۲

دپېریو په بتۍ کې

سر دې پورته کړه له خوبه او بو یووړې دتاریخ د تاړاکونو ځپـــــو یووړې
پو لادنه شوې دپېریو پـــــه بتۍ کې لکه ځوځ داز موینو لمبو یـــووړې

زه به تر څو ژاړم

ناست یې ته سبا ته او زه وینم سبا درومي
ګورې زمانې ته او زه وینم چې دا درومي
پرانیزه کوګل دې چې زه بلې لمبې در کړم
زه اوس ایرې کېږم دا اورونه له ما درومي
مه څه هغې خوا ته چې دلارې اورې نشته
سم شه هغې خوا ته چې دا ټوله دنیا درومي
عمر څو همدادی چې تېرېږي نه را ګرزي
وخوځه که څوځې لکه ځل دبرېښنا درومي
زه به تر څو ژاړم ستا په سر ته به ویده یې
اوښکې که دریاب شي هم وچېږي اویا درومي

کابل ۱۲ر۱۱ر۱۳۴۲

دوینو لار

ته دعشق په کارو بار کې فریادي شـــوې
څوک چې لوبه دمجنون کړي فریاد نه کا
چې دوینو په لار ځي او نـــــه دریـــږي
بیا دې هر خس و خاشاک ته بېداد نه کـــا

دا د ځمکو غل

زړه مې له مکيز دهر دلبره سره نه ځي
پښې مې د دوران له هر بې سره سره نه ځي
زما بت شکن مټ چې گوزارونه درستم کړي
هيځکله په جن□ له بې ځيگره سره نه ځي
دا زخمي وطن چې دمزدور په وينو رن□ دی
نور په دغه لار له ستمگره سره نه ځي
نشته د کارگر له دې نظامه سره سوله
دا سپينه کوتره له اژدره سره نه ځي
څټ دسرمايې ته دپولادو څټک بويه
دا لېوه په روغه له کارگره سره نه ځي
دا دځمکو غل، داخپټور ، دغه د کلي خان
لاره دوروری با ندې بزگره سره نه ځي
ليد يې نېکمرغي دخوارو خلکو زغمای نشي
عقل يې په خير له بشره سره نه ځي
دا خلک نور پل له استثماره سره نه ږدي
دا وطن يو گام له دې بر بره سره نه ځي

کابل ۱۸ر۹ر۱۳۵۱

دعشق سندرې

مینې مجنون کړم بیا باني شـــوم | دیا ر له ذوقه هسي فا ني شوم
ر گ ر گ مې و ایې دعشق سندري | له دغه فیضه جاو داني شـــوم

## زما تندی

چې را خو شي کړي آسمان کو مه ډبره
په تندي مې را گوزار شي نا ببره
لا زما په سر جنگۍ باندې شکمن دی
څه احمق دی دا فلک دا نا خبره
دزړه تاو به مې هېڅکله بهر نشي
که له غره سره و نه و هم ککره
که به یو ه شېبه پې خوبن یم مرد به نه یم
دژو ندون په کارو بار بې شورو شره
«له سپوږمو نه یې لا شنه لو خړه خېژي»
چا چې موږ سره و هلې ده ډغره
د سېلاب تر مستي جار شم چې وردا نگي
دهدف په لور په لوړه او ژوره

۱۷ر۵ر۱۳۴۶

## زما شعر

اې زما غیرتي شعره که ته نــــــه وای | مابه چا سره ژړل دا خپل غمونــــه
که تا لاره دمردۍ نه وی ښـــــو ولې | ما به څرنګه پالل دزمرو پلونـــــه
خدازده څه به په ما کړل دې خپلو هیلو | مابه چا ته لوڅول خپل ارمانونـــه
په کوم ساز به مې دزړه نغمه وهلـــــه | کوم رباب به جګول زما غږونـــه
کومې هیلې کوم ارمان ته به ژوندی وم | څنګه څنګه به مې وړل دغم بارونه
چابه کشله دمظلوم په نن□ کې تــوره | چابه کړل په ظالمانو ګوزارونـــه
چا به وې ساده بزګر ته چې راویښ شه | ستا په وینو رنګینه دا رباب خونـــه
سخت سفر به مې په څه آسانېدی شـــو | نیغي لارې، ښویي پرښي، ګړنګونه
تنهایي اوتیارې شپې ددښمن وېـــــره | بې وسي او ځوروونکې منزلونـــه
چا به وې دغه مختورا سمان دې بل شي | ترې دې و اورې دوینو بارانونــه
چا به وې سپېره وطن دې ګلستا ن شي | پې خواره دې شي ببر ببر ګلونــه
د وورو ویده برېښنا به چالید لـــــه | چې سبا به ترې کوزېږي تندرونـــه
چالیدی شوي دزمان ساده افق کـــې | سوروطن، سور مستقبل، سره هدفونه

کابل ۱۵ر۲ر۱۳۴۲

## نوی عاشق

نجونو ما پرېږدئ چې رسوا کېږم
نوی عاشق یم بې حیا کېـــــــږم

ما له دې ګرمو شو نډو نه ســـا تئ
له وا که وزم بې پروا کېــــــــــــږم

جوالي ته

زړه مې راته وايي چې تپوس و کړم
ښنګه دي دو ند با رو نه ښنګه دي؟
ته چې کړې ورځ دا جوالونه وړې
ښنګه دي، دملا دردونه ښنګه دي
زړه چې دې له لوړې نه ښوا که شي
بيا د پيلاوو بو يو نه ښنګه دي؟
شپې چې وړې پرېوزې په لانده غولي
دا دبد مرغۍ خوبونه ښنګه دي
بيا چې دې ماشوم له تبې وژاړي
دا دغم او رنځ سازونه ښنګه دي
ته چې يې دې ژوند ته مجبور کړې يې
بيا ددې نظام خوندونه ښنګه دي

کا بل ۵ر۸ر۱۳۴۳

اسير انسان

زمان درياب دی، جهان ګرداب دی
مينه ښپه ده ، هجر تالاب دی
د دې پيا وړو په های وهو کې

انسان اسیر دی ، ضعیف حباب دي

ښځه

څو ک ده دا ښیبا که چې وهي لاره دزړونو
اخلي دمخ آب په تازګۍ کې له ګلونو
موج يې دو ښښتانو خپروي بر ښښنا د تورې
ول يې دپېکي کړی په پښو کې دعقلونو
عطر د کاکل يې دشاعر دژوند سندره
شور يې دبنګړو دلپونو دفریادونو
اوښکې يې په سترګو کې غمي دمرغلرو
شونډې يې خنداکې سرې سکروټې دلالونو
رن□ يې دچشمانو داسمان لاجبري خونه
شور يې په سینه کې د کیهان دپروازونو
چم يې په جلوه کې دهوسیو درغونو
سام يې په نظر کې لکه باز دلوړو غرونو
عشق يې دانسان دژوندانه دبقا لاره
غېږ يې مدرسه دنوابغو دفکرونو
ښځه يوه نغمه ده دعشقونو دخوبونو
ایستې ده فطرت دژوندانه له ربابونو

کابل ۱ر۷ر۱۳۴۳

دعشق زور

نن مې کوګل کې بیا شور ماشـــور دی　　د زړه بلبل مې سوی پـــــــه اور دی
رګ رګ مې خوځي وجود مې سوځي　　عشقه نور بس که معلوم دې زور دی

فریادي نفس

که هرڅو ترخه رازونه زړه کې ساتم
د کام مینه راته وایي وایه وایه
ډیر دردونه مې دزړه په کور کې پټ کړه
اوس نو سوځي راته وایي ښایه ښایه
که هر څو یې خوله را ماته کړه په سوکو
فریادي نفس مې حال ښیي له ورایه
که مې ګوته مستبد ته کړه نشوه
تېز نظر به مې خطا نشي مه ځایه
زه په سترګو کې حال وایمه تېزبین ته
په ښهو کې ولس ته ښایم خپله رایه

کابل　۲۲ر۱۱ر۱۳۴۱

زما شپه او ورځ

یارانو ګورئ مینه مې سوځي
ساز دغمو مې رګو کې خوځي
خلک په شپه کې یوائې ژاړي
زه په شپه ژاړم ، سوځم دورځي

درز مونو پر لور

په زړه کې مې له درده فریادونه نه ځا یيږي
ځان اچوم څپوته نور صبرونه نه ځا یيږي
زموږ سینې دظلم په خنجر سورۍ سورۍ دي
په دې زخمي سینو کې نور زخمونه نه ځا یيږي
لښتي دخپلو او ښکوبه بحرونو ته ور سم کړو
په غبږه دلښتي کې توفانونه نه ځا یيږي
په سرو لمبو کې لامبي دویتنام غښتلي خلک
دوینو په تالاب کې خو خوبونه نه ځل یيږي
مزدوره ماتوه یې، سوځوه یې، ور کوه یې
په پښو دآزادۍ کې ځنځیرونه نه ځا یيږي
داڅوک وایي چې دام دی، تور تلک دی او کړۍ دي؟
په اور دانقلاب کې تور دامونه نه ځا یيږي
ور دانګۍ په زړه دنیا بې مزده مزدورانو
دې کار کې نور بې ځا یه تد بیرونه نه ځاییږي
زړه دنیا کړۍ ورانه، دا زړې ککرې ماتې
په دې زړو ماغزو کې نهضتونه نه ځا یيږي
ګر یوان ته یې لاس وړه چې دا ښښتن داسیرانو
وسله په ځمکه ږدي نور ټینګارونه نه ځا یيږي
په زړه کې مې خو ځېږي دجګړو دریابونه

سینه کې خوملګرو دریا بونه نه ځاییږي
اخیستی یم په مخه د رزمونو هوسونو
لا رباسیه سنګر ته هوسونه نه ځاییږي
لا مخکې دلایق زړه دوطن په مینه سوی
دده په زردشت زړه کې نور اورونه نه ځاییږي

کابل ۱۱ر۲ر۱۳۵۵

## د بوسې سوال

مسکه شوله، ورانه شوه، په شا رانه روانه شوه
نه یم پوهېدلی چې په څه رانه ستومونه شوه
چا سره چې نه پېرې په ژبه عاشقي کوې
مینه دې ناکامه، تلوسه دې لا لهانه شوه
ما ویل نجلۍ یې؟ ښاپېرۍ یې؟ که ملکه یې؟
دې په خندا وې «ني پني مایو» (۱) خرامانه شوه
اې دقفقاز حورو زه له لرې نه راغلی یم
یوه مساپري ده بل ځانګړې راته ګرانه شوه
یو واري مې وکه په تفلیس کې دبوسې سوال
شونډو ته لا نه وه رسېدلې پښېمانه شوه
زه څه پوهېدم چې ښاپېرو کې به مې کلی شي
مېنه مې سپېره دپلار کوډله مې ویرانه سوه

تفلیس- ګرجستان ۱۷ر۷ر۱۹۶۴م

---

(۱) روسي جمله ده، معنا یې داده: «نه پوهېږم»

دجن□ سنگر

د دنیا په زړه خونه ته گډ شوی نوی شوريې
دزاړه نظام په کور کې لگېدلی نوی شور يې
ته مضمون يې،ته ژوندونيې،ته سمون يې، ته قانون يې
ته هادي دنهضتويې،اې کار گره ته لانور يې
په زړه دنيا وردانگه تر گوزار دې قرباني شم
تر گوزار دقرباني شم، تهدنوي جهان موريې
دبورژوا دا گردی خېټه نه مړېږي نه ډکېږي
دا له خاورو که ورډکه ته يې مرگ يې ته يې روريې
ته توفان يې،ته سېلاب يې،ته هادي دا نقلاب يې
ته د دغه جن□ سنگر يې،ته د دغوهيلو کور يې

۱۱ر۲ر۱۳۵۱

د رسوايي شوق

هومره مې مست کړه چې بې پروا شـم          ساقي همت کړه گوندې رسواشم
کاشکې مستي مې له پښو خلاص کړي          د يار محفل ته په ستر گوپښو را شم

زمورژوند

دا ژوندون څه دی ،دخوب لیده دي          چې را بیدار شوم،جو ګه د دار شوم
دیوه بیدا ره فریا د   په جـــــــــرم          دهر ناولي دستر ګــــو خــــار شوم

دمینې نا کردې

را یادېږي بیا دمینې نا کردې
ګېر چاپېره رانه تاو دي سرې لمبې
په سپېرو خبرو څه کېږي ز ا هد ه
ماته مه کړه دا بې خو نده دا سړې
که هر څو یې پا کوم چاره یې نشي
له لېمو مې را روانې دي چینې
یار که هر څه په ما کاندي وا ک یې خپل دی
بیا به نه کوم رقیب ته دا ګلې

کا بل ........

که حسن نه وای

که حسن نه وای مضمون به څه و          که مینه نه ای ژوندون به څه و
که دغمونو تجلي نــــــــه وای          زما دمستیو جنون به څــــــه و

مرور یا ر ته

رائحه پخلا شو مـــــــــرور یــــــــاره
مر ګ به په خپله جلا کـــــــــــړي لا ره

دوه ورځې روند دی راځه چې هېر کړو
ترخه یادونه دغـــــــم نــــــا تـــــا ره

د توفان بچی

څه له مې را بولئ سیل دګلو ته
زه خو چېړي نه یم دسلطان بچی
ما دتوفانو څپو ته واچوئ
غواړي توفانو نه دتوفان بچی
تالنده چې غبر کړي دی مستي کوي
دا دترږميو دباران بچی
نشي په قفس کې پاتېدی نشي
دغه الوتونکی داسمان بچی
شرن□ دزولنو دژوند سندره ده
نازي په ځنځير کې دزندان بچی
سر به یې کوز نشي سر کشانو ته
ځان ته که څوک وايي دافغان بچی

پلخمري ۱۹ر۶ر۱۳۴۴

خوني سترگې

په خوني سترگو دې وخوړلم چور
ته دلبر يې، که قاتل يې، که تور بور
هر خندی دې زما له عمره سره رنځ شو
خال دشونډو دې دسوي زړه ناصور
ته مې ويني تويوه پروا يې مه کړه
زه پيدا يم له ازله هسي سور
چې نه سوی وي او نه داغ وي عاشق نه دی
هر سرباز به يو نشان لري ضرور
ما په خوب کې مچولې پښيمان شوم
عاشقي له سړي يوسي سم شعور
بي له عشقه ژوندون خوشي ثو سلگي دي
يا يوه لوبه چې نه رن□ لري نه نور
ثومره پراخ دی دود او دين دعاشقانو
ورته يو دی که گلزار دی که تنور
زه به سر له خپله ياره قرباني کړم
پرې به نه ږدم خپلې مينې کې قصور

کابل ١٨ر۴ر١٣٥١

## انقلاب را روان دی

را روان به موج خون شي زه پوهېږم
حاکمان به سر نګون شي زه پوهېږم
د وطن دهرې لوټې په خاطر به
هر زلمی لکه مجنون شي زه پوهېږم
کوم ارمان چې دمزدور په زړه کې خوځي
په وطن کې به قانون شي زه پوهېږم
سل فرهاده يې په هر کانې اخته دي
دا وطن به بېستون شي زه پوهېږم
ماتې او ښکې به په ستر ګو دمجنون کې
تالا بونه دجيحون شي زه پوهېږم
دا دنن ورځې زمری چې موږ ته ګوابښي
پمن سپی به دپرون شي زه پوهېږم
اوس ويده بازان په غرو کې راويښېږي
تسلي به مې جنون شي زه پوهېږم
داچې زه يې ستومان کړی دتيارو يم
دغه شپه به سباوون شي زه پوهېږم
لمر به خورشي دشپنو په تيارو تالو
بر يامی به زموږ يون شي زه پوهېږم
دا دخان له لاسه وران او ويجاړ کلی

د زیر کښنو به کمون شي زه پو هېږم
داوطن چې ستمګرو تحقیر کړی
انقلاب به یې مضمون شي زه وهېږم

کابل ۱۸ر۴ر۱۳۵۱

## غزل

څومره لوی عذاب دی دعشق اورته زړه نیول
اور ته زړه نیول اورقیبانو ته خندل
هر چېرې چې جګه کړي خوبان ناره دستي
ندی دود دعشق دخپلي وینې سپمول
نه اخلم په عشق کې زه له چا کسات دسولو
نه ځي له جامو وینې دبل په وینو ولل
زه یې دغمونو په اورونو کې لا هو کړم
ځکه مې تمامه شپه په اوښکو کې لمبل
زما زړه دغمونو یو نا پای آتشفشان دی
نه یې شته بل کار بې له اورونو غورځول
زه به له دې اوره خپل داوښکو امېل جار کم
نلرم افسوس دی له دې پورته بل بدل

کابل ۳ر۹ر۱۳۵۱

## گرداب

دچا اوښکې، دچا آه، دچا خونـــاب دی
راروان مې په خبرو کې سېـــــلاب دي
په موجو يې لنگر مه ژده بې خبـــــــره
گوره پام که دا ساحل نه دی گرداب دی

## پرغلو شاهدان

داموټري،داباغونه،داقصـــــــرونه
داپه وينو آباد شوي تعميـــــرونه
دابه وسپېړي يوه ورځ دخلکو مخکي
دچا غلا،دچاتېری،دچاظلمونه

د اوښکو سېلا ب

عشق په لېونتوب کې واک دسر را څخه یو ووړ
زړه مې په ګردش کې یوه نظر راڅخه یـــو ووړ
زهد مې سپر که دهو سیو هوســـــوتـــــه
چا دستر ګو جن□ کې دا سپر راڅخه یـــو ووړ
صبر مې پالن□ کړ دهجران په اوږدو شپـــو کې
اوښکو په سېلاب کې دا بستر را څخه یـــو ووړ
ما وې دزړه ور به ښایسته وو ته خلاص نکـــړم
نجونو په مستۍ کې دزړه ور راڅخه یـــو ووړ
زه آزاد مارغه په لوړو غرو به الوتمـــــــه
غېشو دبڼو یې بال او پر را څخه یــــــو ووړ

غزني .......

لند نۍ ټوپۍ

موږ وې د لته دې سو کا ل وطن ودا ن شي — دپیړیو خار ستا ن دې ګلستان شـــي
ټول کامو نه دې ګلا ن ددې بستـــا ن وي — دا وطن دې سم آزا د افغا نستان شـــي
ولس دې خلاص شي دفرن□ له چا کرا نو — دانګر یز صوبه دې بیا پښتو نستان شـــي

لند ني ټو پې په سر پنجا بی راغـــــــی	وې دا سیمه باید ټوله پاکستان شــــي
دا یوهوډ دی د لند ن تغییر به نشــــــي	باید لري له نقشې افغانستـــــان شي
ټول افغان ملت په یوه ژبه نارې کـــړې	دا محال ده مگر ټول جهان ویران شي

## د ښځې ژړا

مه مې خندوه نارینه نه یم دخندا
زه یوه ناره یم دغمونو د دنیا
ستا په زندانو کې مې پېړۍ پېړۍ ژړلي
نشته راکې توان نور دغمونو د ژړا
زه دژوند جوهر، دعشق ډېوه، دانسان مورومه
تا کړمه نانوکه دشیطان دمشغولا
کله دې اسیره دځنځیرو کړم دزرو
کله دېکړیو کې بندي کړم دطلا
دا زما په لاس کې کړۍ نه دي اتکړۍ دي
زما دغوږ لښتۍ دوینځیتوب دي برالا
زما دسرو پېزوان دغلامۍ دذلتونو
زما دغاړې هار مهار دظلم دی دتا
ما دآزادۍ یوائې نوم دی اورېدلی
ژوند مې شو لوگی د دې عنقا په تمنا
زه په ټول تاریخ کې ملعبه ستا دشهوت ومه
یا یوه تحفه دستمگرو درضا
کله به چې خرڅه شوم نانزکه کنیز که وم
پښې به مې شوې ماتې هرظالم ته په نڅا

لري له همځولو،له وطنه،له ملګرونه
ستر ګې به مې پوچې کړې غمونو په ژړا
لاره دهوس کې هرفاسد دپټکي ګل کړمه
ځای کې دعزت بیا بې عزته دهرچا
ستاشوه ،امیري شوه، که میري شوه ، که خاني شوه
زما شو، که آفت شو، که ذلت شو که بلا
اوس راسره مات کړه دتاریخ دا ځنځیرونه
ایسته که له لاري تور دامونه دجفا
زه دانسان مور یمه، درنه یمه،آزاده یم
دا دبندګۍ زولنې لرې که له ما

کابل۱٦ر۱۲ر۱۳۵۱

غزل

مینه ددلبر زما په سر لوبې کوي
زړه یې رانه وړی په ځیګر لوبي کوي
زه یو بندیوان دتورو شپو دژوندانه وم
زما په تورو شپو باندې سحر لوبي کوي
کله چې یې شور د خندي خور شي په مستي کې
زما په سړه وینه کې شرر لوبې کو ي
هله چې له سپین مخه چاپېر که هار دزلفو
تور وربځ خوره شي او په لمر لوبي کوي
داسي څپه نشته چې دعشق هوس یې نه وي
شور د لېونتوب په بحرو بر لوبي کوي
زه آزاد مارغه وم ترا نې به مې ویلې
عشق مې اوس په بڼو لو وزر لوبې کوي
هر چیرې چې جګه کړي لایق پیاله دمیو
یار په جام کې ویني په ساغر لوبې کوي

کابل ۶ر۹ر۱۳۴۷

## درستم لار

نیمه شپه را وخته کوټې ته یوه نجلۍ
پا که لکه ګل اورمنده لکه هوسۍ
ملا باندې یې ځوړنده دڅڼو توره توره
شونډونه یې سره بربښنا خوره دخونکارۍ
نبض دځوانۍ یې خوځاوه کمیس په تن کې
هسي چې بهېږي سپینه وربځه په سپوږمۍ
تي یې په زانګو داو سپلو کې ښکته پورته
هسي خوځېدل لکه په موج جوړه هیلۍ
غېږ یې پرانستلې لکه ګل دسبا باد ته
خوله یې له خندانه ډکه کړې وه مستۍ
سترګو ته یې میو و ورکړی رن□ دوینو
لېږ راغونډېې شوې ،تنګې شوې، خند نۍ
راغلله ورو ورو لکه درنه بېړۍ ساحل ته
تللیې له خپل واکه مستانه او لېونۍ
ورانه له خندا شوه وې یې ګوره لېونیه
نه به تل ځواني وي،نه شراب او نه شهۍ
وتړه کتاب شیشه راواخله دشرابو
ځغلي زه یې وینم یو په بل پسې ګړۍ
نیسه مې په غېږ کې هسي نه چې خوب مې یوسي
وړی رانه واک دی دشرابو بیخودۍ

ما په شر مېدلي آواز وويل افسوس دی
نلرم توفيق ستا دلبانو د گرمۍ
زه دو چو دښتو لمر وهلی پونده يمه
چېرې وچ اغزی، چېرې د گل تازه غوټۍ
شرم راته برېښي چې دې خوله په شونډو کېږدم
خاري مې د ولس ستر گې لا يوه گوله ډوډۍ
زه لا روږدی نه يم په محفل دښاپېريو کې
خېژي مې له زړه نه لا فرياد دغريبۍ
نه ښايي رستم ته چې روان شي دمجنون په لار
زه يو مبارز يم چېرې زه چېرې شهۍ

توکيو ۱۵ر۱۰ر۱۹٦۳

## افغان پردیس په کاباره کې

مست شو یو افغان د «توکیو» په کاباره کې
غېږ کې یې یوه پېغله لکه پاڼه د ګلاب
سر یې لګولی و دده په سینه باندې
زړه یې و سپارلی هوسوته دشباب
ده یې په دوو تیو لګولې وې منګولې
ښنی یې قمار کې هم جنت و هم ثواب
منځ د کاباري کې یو محشر و دنڅاوو
ځني نڅېدل، ځني لوېدل، ځني خراب
تاو تر سپینو متو حریرونه دلوګیو
تاو تر سرو شرابو تور سیخونه دکباب
شپه به نیمایي وه چې ور یاد شوه خپله مېنه
ونغاړه دردونو ، تې چا پېر شو اضطراب
غوږ ته یې نیږدې شول بیا دلوړي فریادونه
یو وړه اند ښښنو ترینه نښه دمی ناب
ج□ شو له خپل ځایه نجل یې پرېښوده مستۍ کې
ورک شو ترینه لوری د حساب او د کتاب
سترګې یې د او ښکو سېلابونو کړلې پټې
یو وړله د مینې دنیاګۍ ترینه سېلاب

توکیو ۲ر۹ر۱۹۶۳م

پیغام

اې دجاپا ن خلکو ماراوړي پیغامونه دي

ستاسي جزیرو ته زما دغرونو سلامونه دي

پورې له بحرونو، دا شیا دزړه په خونه کې

اوسي افغانان ترېنه تاو شوي اوچت غرونه دي

داقهرمان قوم اوږد ماضي لري ،تاریخ لري

ډک یې له مېړانو دهر عصر کتابونه دي

چا چې پورته کړیې په ا شیا کې دتېري توره

دوی ترېنه غوڅ کړي ورمېږونه او لاسونه دي

زړه یې دزمري،نظر دباز، یرغل یې تندر دي

وړي فا تحا نو ترې لحد ته ارمانونه دي

خاوره دغیرت ده ترېنه جار شمه لوګی شمه

ثبت یې په هر ګام کې دتاریخ انقلابونه دي

ما له هسې خاوري دجاپان غیرتي ولس لره

ځان سره راوړي دوروری تازه ګلونه دي

دا ګلونه څه دي دوروری برابری بوټي

دا دافغانانو ددې عصر شعارونه دي

موږ له نړیوالونه دوستي غواړو وروري غواړو

ځکه مو پرانستي هرملت ته دزړه ورونه دي

شرم دی انسان ته چې جنګېږي له خپل ورور سره

هر څاڅکي دوینو کې فتنې دي، آفتونه دي

واړه سره یو دي، سره ورونه دي ، ملګري دي

ټول بشر یوه ونه،ملتونه یې ښاخونه دي

توکیو ۲۸ر۸ر۱۹۶۳

غرونه او سلامونه

والوتمه والوتم ، دغرو له څوکو والوتـــــــــــم
راغلم دڅپو او توفانو سمندرونوتــــــــــــه
ستر جيحون مې پرېښود چې ټکرې خوري له غرو سره
ځان مې که گوزار دسمندرو ټکرونـــــــوته
زه وم الوتونکی د کمرونو، لامبوزن نـــــــه وم
باز ومه دغرونو توفان راوړم دريا بونو تــــــــه
نه لري او نه لري دغرونو نښه نه لـــــــــري
هر څومره چې ځير شمه اوږدو دساحلونوتـــــه
هره ورځ فوجي ته رسوم دهندو کش ســــــلام
وړمه دلويانو پيغامونه پيوندونوتــــــــــه
يو وخت کې غوړېږي دفوجي او هندو کش گـــلان
يوبه سم گلونه دجاپان خپلو گلونـــــــوته
جوړې به غونچې کړم دفوجي له سلامونونـــــه
کې به ږدم غونچې دخپلو غرونو قدمونوتــــــه
يوبه سلامونه د بزگرو شم بزگـــــــروتــــــه
گوا کې درناوی دپاکو زړونو پاکو زړونوتــــــه
جوړ به دگېښا د زلفو تار نه ربا بونه کـــــــړم
وبه ښيم دود د ولسونو ولســـــــونوتــــــه

توکيو ۲۵ر۸ر۱۹٦۳

د جاپان سباوون

په جاپان باندې چې خورشي سباوون
زما له زړه نه را چاپېر شي موج خون
هرې خوا ته چې خو ځېږي دلمر لونې
لار وهي زما په زړه یا په لړمون
نه په دود سره پوهېږو نه په ژبه
نا هیلي ده ثمره زما دیون
ما وې نن به گوندې راشي زما کورته
سره پوه نه وو راغلې وه پرون
پاس په ستر گو به مې کښنوي که پوه شي
جا پانۍ زما دمینې په جنون
دلته لري دجا پا ن په جزیرو که
را چاپېر دی غم دخلکو دژوندون
یا به سر وربا ندې کېږدمه پوهېږم
یا به ودروم په پښو ویده پښتون
له ځیگره مې دوینو فوارې ځي
چې را یاد شي خپل ځوانان هغه جبون

نیکو . جاپان ۱ر۹ر۱۹۶۳

انتخا ب

په لمبو لمبو اورونه دشبـــــــا ب    را کې مړه شول د هوډونو په حساب
ما هر څه له خپل وطنه قربا ني کړل    هم دغه و زما دعمر انتخـــــــا ب

ما هېر کړه

ما وې نجلۍ لېږه ستنه شه ځکه
خدازده چې بیا سره پیدا کو دلې
د گولو څانگه را کړه شوه په ما
په سوې سا یې ویل ولې ولې ؟
ما ویل با زیمه د لوړو غرونو
آخر به الوزمه پوه شوې گلې
زه یم دغرو د دریابونو نه یم
بېځایه مه کوه دا هلې ځلې
دغم وریځې پې خورې ورې شوې
لکه ما شوم یې راته وژړلې
ته خو به والوزې د غرونو به شې
چاته پرېږدې دغه ما غمځپلې؟
ما ویل هو دژوند تقدیر دي دغه
غم دمردانو ، مرد دغم دی نجلې
زه یم دغرو دسمندر به نشم
څه وکم ببلې دي دبرخو تلې
رانه چا پېر دي دوطن خوبونه
دغرونو مینه مې دو کارې ولې
زه هم، وطن لرمه ولس لرمه
ماته په لار دي ډېرې سترگې هلې
وزر مې سوځي دپرواز په هوس
گرزېدی نشم اور مې اخلي تلې
هېر که ما هېر که ، لکه هېر خوبونه

خدا زده چې بیا سره پیدا کو دلې!

توکیو۵ر۱۰ر۱۹٦۳

اې زما ورانه وطنه

د سوچي( ۱ ) په ساحلو کې را په ياد شوې په فرياد شوم
اې زما بد مرغه ولسه ، اې زما ورانه وطنه
دلته ژوندی ، دلته خوندی،دلته شور، دلته نشاط دی
حوري ګرزي ډله ډله، هيڅوک نشته بې مينه
په دې ښکلو ښکلو سيمو دانسان لاسونه خوځي
غرونه شنه ، باغونه سره دي، ټوله ځمکه ده چکنه
هره پيغله چې تېرېږي ، يوه ليلاده يوه دنياده
که را غبرګه يوه وږمه شي ، ته وا راغله له ختنه
تور درياب لونې ځګونه ، ساحل اخلي ټکرونه
سپين مرغان ور باندې ښوري،شنه فضا ور باندې پلنه
د درياب دزړ په شګو پيغلې نجونه کتار ناستې
هسي لامبي لکه بطې زده يې نه وي الوتنه
هر يو موج چې را پيداشي ،سر را ج□ کړي بيا په شا شي
څپې تللي دي له واکه، کړي د نجونه ګوېږنه
څوک لمبېږي، څوک نڅېږي، څوک خواله کړي يو تربله
څوک را ګرزي په باغونو، څوک ګلان وړي له چمنه
د تمام ساحل دپاسه ، د موزيک څپې خورېږي
ځوا ن روسي کمپوزر وړی دا ميدا ن له بتهوفنه ( ۲ )
په فضا کې يو ځای شوی بوی دعطرو له شرا به
په څپو کې يو ځای شوی تور درياب له سيمين تنه
څوک رنګېږي، څوک جګېږي، څوک جوړه ځيني يواځي
دچالپڅه، دچا غاړه، ديوه لاس د بل لمنه
دچا شونډې په شونډا نو، دچا زلفې په چشما نو

آزادي ده ، کامراني ده ، څوک له چانکه پوښتنه
مگر زه غریب تنها یم، نه نخیږم، نه څوک بیا یم
نه د کاریم، نه د ښکار یم، نه مې زړه شته نه مې ینه
که نېشه شم که گوشه شم، را یا دېږي درته سوځم
درته سوځمه در جار شم ، اې وطنه بې څښتنه
دسوچي دگلو سور رن□،سرې لمبې دي را تاوېږي
نه آرام شته، نه قرار شته ، په گرزا په کېناستنه
زه د کوم زخم دوا شم ، زه دچا په تسلا شم
ستا په کار کې واک وتلی، هم له سره هم له تنه
نه چا بوټي در کې شین که ، نه چا جوړ درته ماشین که
حاکمان کوي حکمونه، تاجران کوي شکونه
په ځنځیرو یې تړلی، په سمومو يې لړلی
دود دې وزي له چمنه ، ځوځ دې خېژي له سمنه
په کابل او په زابل دې ، دنفاق اورونه بل دي
لور خپل مور ته په زړه غله ده ، زوی له پلاره کړي وهنه
څوک ناروغه څوک په لوږو، څوک په وررږو ، څوک په سپږو
ټول ژوندي دې بې پرتوگه ، واړه مړه دې بې کفنه
نه ورشو شوه دشنېلیو،نه پټي شو ل د لښتیو
نه شپونکی موږ شو په غوښو، نه بزگر موږ شو له نغنه
ستا دپاک آسمان دلاندې، ټول جهان ویران ویران دی
ټول جهان ویران ویران دی، زه به کومه سمومه
زما دې لوړه وي په مینه، دافغا ن په پاکه وینه
نوی زړی به رسیږي ، زما په وینو به شي ونه
گام به واخلمه میدان ته، سر به کېږدم امتحان ته

ستا په لورې به در ځمه ، که شي لار دستنو ستنه
ستا ویده به را بیدا رکم، ستا لار ورکي به په لار کم
ستا دغرو ویده با زان به، را اوچت کم له دمنه
اور به بل دآزادۍ کم، بیا په خپله به پتن□ شم
خپل ژوندون به ترې قربان کړم خود به کړم دعشق مننه
ترهغو به لاس وانخلم ثو په غرو کې دې رڼا شي
اې زما غریبه ولسه ،اې زما ورانه وطنه

سوچي ۱۱ر٦ر۱۹٦۴
( ۱ ) دتور سمندرگي په غاړه دروسیې یو ښار
( ۲ ) بتهوفن ( ۱۷۷۰-۱۸۲۷ ) دجرمني دکلاسیک موزیک یو ستر مصنف .

مایا کوفسکي( ۱)

په مسکو کې د گور کي د کوڅې خوا کې
مایا کوفسکي دربد لی لکه غر
ملتونه دشورا ورته ولاړ دي
غوړولی ستر مسکو ورته وزر
خپل هدف ته هسې ځیر دی ته به وا یې
په ښکار نښتی دی دوړ.ي باز نظر
هومره دروند هومره ډاډه په ځای ولاړ دی
لکه و نیسي خوشحال ختک خیبر
چې کلونه څو تېرېږ.ي دی لوییږ.ي
زمانه وربان‌دې نلري اثر
پخپل یون کې یې آسمان له گروې و نیو
له تقدیر سره یې و وا هه ټکر
په حرمت مې مغزی هیچاته کوز نشو
مگر ده ته مې کوزېږ.ي مغرور سر
په عالم کې یې دسولې پیغام خور که
ورور ولي ته یې را و با له بشر
مگر ته اې ستر ا نسا نه، اې شاعره
تابه ستایي څو شاعر شته څو اثر
څو دنیاوي ستا پیغام به ژوندی ساتي
ستا اشعار ، ستاسرودونه، ستا هنر

زما له زړه را اچتېږ.ي داچې وایم

ما یا کوفسکي درېد لی لکه غر

مسکو ۳ر۷ر۱۹٦۴

قلندر شاعر

بیا دزمانې ډمې اخیستی نوی چن□ دی
لاس کې یې نیولی دبادې په ځای کې بن□ دی
بیا په غرو رغو باندې خور شوی دبهار نسیم
غوږ نه مې چاپېر دجنکو دزلفو زن□ دی
چاباندې چې لگي دراتلونکې پسرلي نسیم
دغه زوړ جهان یې دزندان په شانې تن□ دی
سین چې له ډبرو سره سر وهي په لاره کې
ښیې په ښکاره چې حرکت پخپله جن□ دی
زه د شلم قرن قلندر غوندې شاعر یمه
زما بوسه په ټولو جنکو باندې قلن□ دی

کابل ۲۵ر۱۲ر۱۳۴۵

د سبو پېټی

لاره کې موټر په یوه بېوزله ماشوم راغی
ووا هه موټر له ځایه لس گزه گزار شو
ودرېد گړندی لکه خوني لېوه پسه ته
راغی ترافیک یو څه مبلغ ته تمه دا ر شو
یوه شېبکۍ وروسته ماشوم خلاصې کړلې ستر گې
ودرېده ،بې واره پـــه ژ ړا او په کو کار شو
ما وې گوندې ژاړي خپلو وینو او زخمو نو ته
ده نا څاپي پرا نیستلې شونډې په گفتار شو
څه شوه خدای دپاره هغه زما دسبو غوټه
پلار به مې پې مړ کړي که خبر زما په کار شو
کله چې یې ستر گې په پا شلو سبو را غلې
هڅه یې ور و کړه بیا په ځمکه را گوزار شو
وې رېږدېدې گوتي په خاپوړو ور نیږدې شو
غېږ یې ترېنه تاو کړه په سبو باندې هوا ر شو
وینې یې لټېتی شوې په ماشوم صورت یې راغلې
توی شوې په سبو ، دسبو پېټی پې خونکا ر شو
ما چې په ژړنو ستر گو ولیده دا الـــــــو به
زړه مې له نړۍ او نړیوالو نه بېزار شـــــــو
یو په بېکسۍ کې وږی مري دموټر پېښو ته
بل په بېکسۍ کې خلک وژني او سالار شو

اې په زرو مستو لیږ را کوز شئ چې د ا فقر

ستاسي دچړچو په قیمت خلکو باندې بار شو

کابل ۱۵ر۸ ۱۳۴۳

له زمانې سره یو ځای

تښتي شپې او ورځې زېږي نوې زمـــــــا نې
ځغلي زما له خولې ور سره سمې تـــــــرا نې
لېږم له هر گام سره لښکر د ارمانونـــــــــو
ساتمه را تلو نکو ته درزم نشـــــــــا نې
لو بم لکه باد دسباوون ديار په زلفـــــــــو
غوا ړم ماتولو دځنځير ته بهـــــــــا نې
هر آواز چې ج□ شو دمر دانو له مرۍ نـــــه
رېږدي يې له زوره زړې شوې بتخـــــــا نې
را شئ چې د ميو دريا بونه را روان کــــــړو
نوي يا ران نه مستوي دغه ميخـــــــا نې
ځغلم د زمان له قافلو سره په مخـــــــــه
ودي کړي رقيب څه يې چې خوښه وي کانې
سر که رانه پرې شو مابخشلی دی په جن□ کې
نکړي سربازان له د ښمنا نونـــه مـــــا نې
لري کړه صيا ده دا عبث دا مونه لـــــــومي
زه يرغلي بازيم روږدی نه يم پـــــه دا نې
هرې زلزلې سره په غرونو دوطـــــــن کې
زما د زړه له اوره پورته کـــــــېږي زبا نې
مه يې وېروه لا يق دسر په سودا نـــــــدی
هسې خدا يږوغواړي سر بازۍ ته بهـــــا نې

کابل ۱۳۴۵ر۹ر۲۹

بولله دپسرلي هر کلي ته

غرونو باندې پلنې شوې وريځې دنيسان
مځکې باندې اوري مرغلرې دباران
مستشول بيا چړونه په نغمو کې دزر کانو
خوځي کتارونه بيا دزانو په کسمان
هره ترانه چې د درياب له څپو وزي
پو کړي په بېځانه دنيا ګۍ کې نوی ځان
خاندي په ډبرو څراغونه دلاله
وزي له سپېرو خاورو ګلونه دريحان
سپين ګلان په شنه مرغه کې بربښي زما له ستر ګو
شپه کې دمستط ده شنه اسانکې کهکشان
هر څاڅکی دوينو مې لمن لمن ګلونه شول
رګ رګ کې مې خوځي دشعرونو بلبلان
وربځې چې کتارې شي دغرو په ديوالونو
ته وايې چې خوځي په افق کې سپين وښان
شور چې شي دتالندې غوړوته هسي رسي
ځغلي په اسمان کې يرغلګر جنګي اسان
سم شول په سارا باندې دګلو چپاوونه
وخاته په تړو دريدي ګلو سپايان
غشي دلمر اوري له کړکيو د وريځو
شنې زرغونې واخيست له رستم څخه کمان
جوړ کړل پسرلي له نسترن نه سپرونه
وايسته له تېکې سوسن توره داحسان
وربځې په افق کې سرې سکروټې شوې داور

تاو شوه استالف نه سره لمبه دارغوان

سپین دواورې الوزي دغرو له سر او ږیري

زوړ چونغر بدل که لمر دمینې بیا په ځوان

تالو کې خورې شوې دشپونکي دشپیلي شڅریکې

بولي طبیعت ته گوشه گیره شاعران

رسي دبزگر ستومان زړگي ته نوې دمه

خوځي په رگو کې دشپانه نوی ارمان

او ښکو دباران ته دبرښنا خوله خند نیۍ شوه

زوړ جهان تکرار که داضدادو امتحان

ویلي الماس څاڅي دتاکو له غوځو څا نگو

گلو ته نذرونه دشرابو وړي رزان

ته اې زما یاره ولي گرزې لري لري

راشه چې سیندونه دخنداوو کو روان

زه به دخپل زړه بلبل راضي کمه چې در شي

خیر که په سینه باندې دې رپي دوه بازان

جار به دا بلبل ستا دبازانو تر مستۍ کم

جوړ به بل دده له فریادو کمه جهان

و خانده چې و سپړي غوټۍ ماشومې شونډې

و ناڅه چې مست شي هم زمین او هم زمان

ما باندې خوره که یوه خیمه دتورو مشکو

یو ځلي خواره که په پالن□ زما زلفان

زړه که دې دښکار مینه لري زما دلبره

غشي دبڼو زما سینې ته که نشان

مه گوره او بو کې هسي نه چې ستا له مخې

ډوبه زما دمينې دنيا ګۍ شي په توفان
ماله دې ساړه قالبه وباسه دورځو
مست مې كه، بېخود مې كه،قربان مې كه تر ځان
شور راكه، ګداز راكه،قدرت دسربازۍ راكه
ماته هم طبيب شه، هم دارو شه، هم درمان
ومې منه،زړه راكه او يار دتورو شپو مې شه
مى شه، پيمانه شه، زما تن شه، زما ځان
ومې سوځه،ومې رټه، خاوره دسارا مې كه
كاشكې سپېلنى شم او له تا شمه قربان
ګل مې كه، بلبل مې كه،شانه دخپل سنبل مې كه
او ياره ! له خپلې بېدردۍ يمه ستومان
داسي بېدردي چې سوځي سوځي مې هڼو كې
داسي بېدردي چې سړوي زما فغان
داسي بېدردي چې زماله مينې سره لوبي
داسي بېدردي چې زغماى نشي عاشقان
يو ځلي دې ستر ګې زما په زړه كه هسي خښې
واورم فر ياد ونه كې دننه دانسان
هله به بيا وبولم دژوند خوږې سندرې
وبه شرنګومه جرسونه دكاروان
سمه به ګرمي كړم دنغمو په مړو ايروكې
مست به كم سيندونه سپېره غرونه به لړزان
ور به ماتو زړونو ته پيوند كمه دهيلو
ور به مړاووهيلوته ګرمي كم جاودان
ستې به مې روغي كم له تيږو دپولادو

سر به حادثو ته کم داو سپنې سندان
دې لو ځو پټو کې به خواره دعشق ګلان کمه
خپل ښکلي وطن ته به جهان کمه حیران
شپوله به د ګلو په عطرو کې لېونۍ کمه
ببل به کم دوریو له رمې ځخه لېوان
اوري به خوښي له کانې کانې ،بوټې بوټې
سم به شي له هیلو دزلمو سره زمان
یو به سي سیندونه له دې غرو سمندرونو ته
زموږ دوررولۍ او دیووالي داستان
مست به سمندر شي له تودو بشارتونونه
وبه نځوي په تورو تلو کې کبان
بیا به دځپو هاتیان وروليپه غېږو
وبه خوځوي زموږ په فخر کې توفان
هله به وما ناکامه او ښکې مرغلرې شي
هر داغ دسینې به مې یاقوت شي درمان
هره ترانه چې دلایق له خولې نه وزي
وایي حماسه دعظمتونو د افغان

کابل ۷ر۱ر۱۳۴۱

بولله دوطن په ماتم او پرتم کې

بیگا خوب کې را ښکاره شوه دخوشحال د منډو سیمه
له لېمو نه مې روان شول په څپو څپو رودونه
اورا خیسی و شنېلیو د مردان په پوله پوله
اوریدلې ترې سکرو ټې، جگېدل ترېنه دودونه
دپنجاب له تورې خولې نه، شنې لوخړې غړو سکه غړو سکه
تو یېد لې پېښورته ، وې یې نیسه اې پښتونه
هره ونه فریادي وه، چې زه سوځمه زه سوځم
له هر وره هرې کړ کۍ نه ، چاپېر شوي وو اورونه
دوطن په شنه لمن کې ، په هر باغ او هر چمن کې
بهېدل داور سینونه ، جوړېدل کې تنرونه
دپښتون په برخه جن□ شو، خپل وطن ورباندې تن□ شو
دننگیا لو په کور راغله ، د لوټمارو چپاوونه
دمیر ویس مرۍ ته لاړې ، د گرگین خوني منگولې
دغوټۍ هیلو ته سیخ شول، دخزان ساړه بادونه
دایمل په غیرت خاندي ، دپنجاب دغلام ستر گې
دبا با له نغري باسي دپښهون عصمتۍ جونه
دلنډي له سینې وزي دغضب تکې سرې کوکې
دخیبر په زړه کې ایشي دپیړیو کساتونه
دپامېر په څوکو څاڅي دالماس له تورو لوښکې
بله نشي له دښمنه ماتوو به غلافونه
دهېلمند دڅپو وښې، له غضبه گوښې گوښې
سره ځغلي لکه ورېځې، سره اوړي لکه غرونه
اباسین چې لا اسیر دی، پښنه تړلی په ځنځیر دی

اوس تر زغرو لاندې ناځي، جقوي تور ځنځيرونه

دابه کله پای ته رسي داومور دپېغور عمر
دا به کله را النډېږي دا زمونږ دکور غمونه
دا به کله را نړېږي دغليم دظلم بارې
دا به کله پورته کېږي دا زمونږ سره بيرغونه
دا به کله پای ته رسي د پښتون ناپايه چيغې
دا به کله تمامېږي دا کيږدئ ستړي مزلزنه
دا به کله پای ته رسي دا زمونږ دخلکو منډې
دا به کله اوچتېږي دا لوېدلي ټيټ سرونه
دا به کله را پارېږي دا زمونږ دغوسې تريخې
دا به کله را پاڅېږي دا زمونږ خره غيرتونه
دا به کله را ټولېږي، تر وطنه به جارېږي
دا ددښتو دلمر سوي،دا دغرو رغو پسونه
څو به دغه تور پنجاب وي، زمونږ په وينوبه سيراب وي
څو به دوی وي او حکمونه، څو به مونږ او زندانونه
څو به دغه مودودي وي، ورسره به مردودي وي
څو به داملا او ملونه ، څو به دا دم او دامونه
څو به دغه پېښور وي ،پښتنو ته به سقر وي
پنجابي ته به جنت وي، پکې جونه او جامونه
څو به دغه اباسين وي ، له غمو به يې زړه شين وي
څوبه دې جنګي خيبر ته ور په بر خه وي شرمونه

اې دلو ننګو ککرو ! چېرې خاورې شوئ دخاورو

د خوشحال په شناختو گرزي داورن□ دزوی اسونه
دتاریخ میړني چېرې؟ تېغ یې کوم ، لښکرېې کوم دی
دافغا ن په نامه چېرې ، هغه ځغا ستې او ننگونه
گرمي تللې ده له لمره ، پښتو تللې له خیبره
په تیرا راخورې شویې، سرې شپې ساړه کلونه
په دې خاوره کې گرمي وه ، په دې خاوره کې مستي وه
په دې خاوره کې نغري وو، په دې خاوره کې دودونه
له اټکه تر چترا له اوس ختلې سا له سیمې
نه یې ژوند شته په هلو کې، نه یې خوځند ه نبضونه
ا وس چې دلته کوم پښتون دی، ښه مریی دی ښه زبون دی
نه یې زړه کې عشق دتورې، نه یې سر کې هوسونه
داچې لوړې یې شملې دي، د کلدارو یې ا سرې دي
دافغان په نن□ څوک نه کا، نه جنگونه نه مرگونه
اوس دبست په تاق کې خوب کا دسارا ستېرې گیدړې
دزرنج په شگو نا ست دي دوحشي لېوه پلونه
اوس دغور په غرو کې ور کې دغوري زمریو ځالې
اوس دبلخ خاورو خوړلي هم یما هم یې توغونه
دمحمود په ښار خوره ده دتاریخ دمر گ بېرستنه
نه پیلان، نه یې لښکرې، نه ا رم ، نه یې رمونه
په بامیان دآسمان ستر گې تکې سرې لا له غضبه
د بودا مخ پسې توږي لا داو ښکو غور ځنگونه
د چونغر په لمن ور که دکوشان د دور ښښه
موتی خاورې ټول ښارونه، څو سکروځې ټول قصرونه
بر دغور دغرونو غاړې ، بې غروره بې سروره

جام له شرمه ځوړند کړي هریرود ته خپل غوړونه
غرجستان چې ویرانه ده، کې ویده لا زمانه ده
شرمنده لوړو بادوته ، دبا با دغرو سرونه
بدخشان لوړې وژلی، انسا ن وړی، حیوا ن وړی
څه که غرونه یې سره زر دي ، څه که که تیږې یې لالونه
اې آزادو خلکو څه شوئ؟هوډ مو څه شو، نن□ مو څه شو ؟
کوم دي کوم دي یرغلونه، چېرې چېرې مرچلونه ؟
کله کله به ناره شي ، تکه سره به تاتره شي ،
داټک لمن به سره شي او آزاد به شي مریونه ؟
دا جنګي مارغان به چېرې ، خوروي دبري زیري
دا آسمان به کله پوښي داورونو درمندونه ؟
دا به کله راځړېږي دغضب دتوفان وریځې
دا به کله ترې اورېږي سرې سکروټې تندرونه ؟
دا به کله کاڼي چوي، دابه کله غرونه خوځي
دابه کله تکه سره شي داسمان دا نیلي خونه ؟
دابه کله غبشي ولي تر برېښنا چټکې ګوتې،
دابه کله تورې باسي دپولادو مړوندونه ؟
دا به کله لاره وزي دراڼه جهان پر لوري
دابه کله پخلا کېږي رټل شوي ارمانونه ؟

اوس خو وخوځه له ځایه چې د اور لمن ته رسي
په نغري نغري دې اوري دپېړیو لعنتونه
ستا دتورې باچا خان شو دپنجاب دخندي خلی

ته لا څه ته منتظر يې نور به څه وي ذلتونه
که اورن□ دی که فرن□ دی ، دواړه يو دي، واړه يو دي
که ايوب دی که بوتو دی دهماغه خره غوږونه
توره وباسه له تېکې چې ريښتونی يې باور شي
ستا په نن□او په مېړانه ، ستا په توره اې پښتونه
هره لاره ورته نيسه ، هره تيږه ورته ښاره
هر ګودر ورته ګرداب که،هره ورځ ورته کلونه
باندې ويې شلوه خېټې، ترېنه ويې باسه سترګې
پې ور ويې ځپه ژامې، پې ورمات يې که غاښونه
سمه غر ورته سنګر که، ناپاياو ورته ګودر که
پرېکوه ترېنه لاسونه، غوڅوه ترېنه سرونه
هرقدم ورته درېږه، هره لوېشت ورسره وژنه
چې په مخه ورادا شي دپېړيو تاړاکونه
د کبرونو کنډولی يې تورو خاورو کې نسکور که
چې را پرېوزي له مستۍ نه، چې را کوز شي له جنونه

زه دې خپل وړه ته حيران يم، دې بې وسه وطنپال ته
ته به وا پې اجاره دي ، ددې ټول وطن غمونه
دشاعر زړه خو شاعر وي حسن غواړي شراب غواړي
جوړوي په تصور کې دخپل خوښې جنتونه
کله رغړي پاس په ورېځو، دسپوږمۍ دشودو جام کې
يا ديار په توده غېږ کې په سر اړوي اورونه
دشاعر دنيا خو هسې يوه رنګينه دنياګۍ وي

دا په تا ولي رالام شول ټول دردونه او رنځونه

اې وطنه زما تنه دا دتا دمينې کار دی
چې راسم يې کړه کوګل ته دا دوينو سېلاوونه
ته زما دعمر خوند يې، ته زما دزړه خاوند يې
ما ګاللي ستا لپاره څه چې دي ټول کړاوونه
ما چې هر چېرې خندلي په مستۍ کې ستا له شوقه
زما خولې ته راسم کړي ظالمانو خپل سوکونه
ما چې تا باندې ژړلي، ټولو سپو راته غپلي
ستا په سر راته څېرمه دي دسپکياوو تعذيرونه
که هر څو په تا ځورېږم له دې ځوره نه مړېږم
ستا لپاره يې زغمای شم څه چې دي ټول کړاوونه
زما په ټول وجود خورې دي ستا دمينې دلمر وړانګې
زما په پله پله کې بهېږي ستا دمينې شرابونه
ستا نسيم دلوړو غرونو ځان پو کي زما په تن کې
ستا ددښتو د باران بوی مستوي زما رګونه

دا وطن دې تل آباد وي، دا سنګر دې تل آزاد وي
پکې خوځې دې وريځې، کې بهېږي دي سينونه
پکې پلنې دې رمې وي، پکې ډېرې دې ګلې وي
کې دې څرې سورکۍ وښې، کې دې ځغلي سپين اسونه

کې دې ښورې دلمر وړانگې، کې دې ناڅې د گل څانگې
کې دې ځلې رنې پرخې، کې دې مست وي شنه رودونه
د آسمان خول دې رنگين وي، دبېديا څادر دې شين وي
لنگوټې دغرو دې سپين وي، سورانسان سره هدفونه
توره وربځ دې نقا شي کا، مسيحا دې جما شي کا
زمرد دې فرا شي کا ، رشک چين دې شي دښتونه
دافق لمن دې سره وي، په دې غرونو دې خوره وي
کې دې الوزي بادونه، کې دې پاتې وي يادونه
دا يادونه د ننگونو، دا يادونه دجنگونو
دا خورې ورې کلاوې، دا اوچت اوچت برجونه
دا دسپاندو بوي بېدياکې، دا دنجونو شور په وراکې
دا جلگې جلگې ملکونه، دا هوار هوار رغونه
دغه جگې جگې ترې، دغه غرونه دړې وړې
دا بهان بها نده لړې ،دا څپان څپا ن خوړونه
دا په واورو پټې څوکې، دغروب دلمبو نوکې
دا ځنځير ځنځيري غاړې ، دغه نېغ ختلي غرونه
دا غونډۍ غونډۍ دخاورو ،دا پوټې پوټې دشگو
دغه ځوړې څوړې تيرې، دا پوړۍ پوړۍ کمرونه
دا دتالندو سندرې ، دږليو مـــــــرغلـــــرې
دا ببر ببره بوټې ، دا حشي وحشي گلونه
د سپوږمۍ په ښکلې شپه کې، دچوپياوو په سينه کې
د وښانو کاروانونه، دشپېليو آوازونه
دغه شنې بخملي ښېځې،دا په غرو څېرې وربځې
دا چمن چمن گلونه، دا رنگين رنگين لاشونه

دا سند رېږي دپوټېو ، دا شفتـــلې د پټېـــــو
دا لښکري دغوټېو، دا بخمل بخمل چترونه
دريدي توفان په راغ کې، دګلاب مستي په باغ کې
دا دنيا دنيا رنګونه، دا دريا دريا عطرونه
دغه ښويي ښويي پرښې، پې خورې دبېښنا کرښې
په ډبرو کې پړقونه، په پړقو پسې ټکونه
همدغه زما وطن دى ، ځما ځان دى ځما تن دى
له ده بل زما اورونه، له ده رن□ زما عشقونه
دى رڼا زما دستر ګو، دى طاقت زما دغبر ګو
دى زما دژوندون شومه ، له ده روغ زما فکرونه
له ده جوړه زما وينه، زما ژوند او دده مينه
له ده پلنې دا سند رې، له ده پورته دا شعرونه
له ده جوړ زما بنياد دى، هم مې پلار هم مې اولاد دى
ده ويده کړه اجدادونه دى به روزي اولادونه
څوژوندى يم دى مې کوردى، بياچې مړشم دى مې ګوردى
زماتن د ده له تنه ، زما هډ د ده هـــــډونـــــــــه
زه که سايمه که تن يم ، سر تر پايه د وطن يم
زه وطن يم ، زه وطن يم، زه يې سين ، زه يې موجونه
څو همدى زموږه مل وي،دنجات ډېوه به بل وي
دى قوت زموږ دمنځو، له ده ج□ زموږ غږونه
زه همدغه قبله ستايم ، دا لمنځمه دې ته پايم
دا وزر زموږ د هڅو، پې ژوندي زموږه زړونه

د«لايق» دسينې اوره خپل نغري کې لېوني شوې

ودې نه ښوول نړۍ ته، دوطن د زړه داغونه
لاکېږدۍ هغه کېږدۍ دي، چې پې تېرې سل پېړۍ دي
پېڅول لا دوزغنو، دکوچي لاهغه خونه
دا انسان باید آزاد شي، یو ځل وخاندي او شاد شي
دا هېر شوی بايد ياد شي، ظالمان شي سرنگونه
لا گالي يې له ناکامه، له آغاه تر انجامه
د ړانده آسمان ځورونه، د کاږه حاکم ظلمونه
دغم څلي بايد وران شي، پې ورسم ياغي توفان شي
وحشي خان عاجز انسان شي او هوار شي لوړ ترجونه
د کلا له لوېشتي لوېشتي ، شي دزور کمبله ټوله
شي ټا ټوبی دبزگرو، بزگران شي سره وروڼه
دغنمو طلايي سين، دملاک دزړه هلاک شي
يو ځل وخاندي بزگرته دا سور سين سره يې موجونه
د کښتو په سره دریاب کې سمه سا واخلي دا سوی
شپېه وغوړوي لمرته خپل آزادتن ا وهډونه
د موگرو په تیاره لار بر ېښنا وغځوي مزي
په نامېندو زړو خواره شي دامید زرين وزرونه
د بزگر دژوندون ځاله ډوبه ډوبه شي خوښۍ کې
پکې ډک شي تش جامونه، پکې تش شي ډک خمونه
داویرجن ماښام برات شي ،داغمجنه ورځ اختر شي
په دې وچو دښتو راشي دشنېليو دریابونه
دجوار ډوډۍ لنده شي دعزت په سپينو پيو
لېږ روښانه شي لېږ پاکه د پېړيو ره خونه
زیار ایستونکې را بیدار شي، په رازونو خبر دار شي

همغوی جوړوي لارې ، همغوي باسي پلونه
هر پاڅون يې آبادي ده، هرغورځن□ يې آزادي د ه
هرآواز چې رااوباسي، غورځوي تور زندانونه
له دوی بل چېرې چې اوردی،له دوی ج□ چېرې چې شوردی
پې توده فضا دځمکې، پې رانه واړه ښارونه
دوی ضامن دآزادۍ دي، معماران دآبادۍ دي
په دوی ګرم سنګرونه، په دوی ښکلي نهضتونه

کابل ۱۵ر۴ر۱۳۵۳

د زردشت دښار پسرلی

بیا د بلخ په شنه ور شو کې، دلا له په درمندو کې
ده ور کړې لېونو ته د بها ر سا قي بلنه
بیا بان خوله خوله دی ، د تا زه بار ا ن له او ښکو
د وږمو سپېڅلي سین کې، دغوټۍ جامه نو نه
غوړولی په سارا کې بهار فرش درنگینه وو
زړه ځمکه ځوانه شوېي هرقدم چکن چکنه
دبخدي په کنډوالو کې گام په گام د گلو شور دی
شرنگوي د گلو پاڼې دعاشق نسیم لمنه
ورېځې گل شي بیا سنبل شي د مار مل دغره په ټنډه
ریدي خېژي په بامونو ، خاټول وزي له دمنه
له رنگین ا فق نه اخلي جا دو گر ما شام مچکې
په پستو پستو وږمو کې عقل وړي له عقل منه
لمر چې کوز شي ډوبېدو ته ته به وایې د اورتوپ دی
یا عا شق زړه د غروب دی، را وتلی دی له تنه
یا دسرو گلو له مو جه را بعې را پورته کړی
د وفا په وینو لژند خپل یا غي سر له کفنه
ته به وایې له آسمانه اوربد لي سره گلونه
یا مجنون ده غوړولې په شنبلیو خپله ینه
یا سره توره دچنگېز ده را وتلې بیا له تېکي
چې خوټېږي زړې وینې په بخد ي کې لا تر ننه
یا لمبه دنوبهار ده دلاله په اوغلو کې
یا زردشت په سجده پروت دی په سکروټو کې دننه
یا سرې وړانگې له جنته یزدا ن لوني پر گلونو

یا توی شوی پر جهان دی جهنم له اهرمنه
دسرو گلو شا ته ښکاري د البرز بخملي ناوې
لکه پېغله چې پرته وي دوصال په سره بړستنه
پاس له څوکو را شېوه دي تورې وربځې ړنګې ړنګې
لکه پرې چې ږدي په تیو خورې څڼې شل کلنه
په بېدیا کې سره خاندي سپین ګلان له سرو ګلانو
په باغو کې لاس تر غاړه بنفشه له یاسمنه
شنې غونډۍ په ګلو ډوبې ، پې خورې زېړې پټارې
ته به وایې زېړ قیطان دی دپسرلي په شنه چپنه
په دې ښکلي شنه وطن کې، ددې خاورې په لمن کې
کا شکې ګل دبیابان وای یا دشنو درو یوه ونه
یا باران دپسرلي وای اوربېد ای په تږیو ځوځو
جګېد ای له هره ځوځه دغوټیو یوه ونه
په دریاب کې یوه څپه وای یا په وربځو کې لمبه وای
دغو مړو ته مې ښوولای د ژوندیو خوځېد نه
جګې جګې ساقي راکه، سره اورونه مهیا که
مرور یار را پخلا که ،چې پې وچښو یو څو منه
ورکوه یې ورکوه یې،مستوه یې مستوه یې
خندوه یې خندوه یې، له سپېدو تر ماخوستنه
تشوه دخم اورونه،تودوه ساړه جامونه
چې دا یخې شپې یونسي، سور ارمان له ا رما نجنه
چې دمیو په مستۍ کې داجها ن لمبه لمبه شي
چې دسرو ګلو په سین کې دا فضا شي سره بخونه
چې دسر له سودا خلاص شي سودایي دتورو زلفو

چې دعشق په سوي اخته کا دمطرب سینه دننه
ګوندې نوي کړي تارونه دزاړه رباب په ستوني
ګوندې سر کړي په نغمو کې یوه نوې ازموینه

بلخ ۱۲ر۲ر۱۳۵۴